# علم الصرف پښتو

## اولین

مؤلف

مولانا مشتاق احمد صاحب

ژباړن:

محمد رسول سعید

# علم الصرف

اوّلین

مؤلف

مولانا مشتاق احمد صاحب

ژباړه

محمدرسول سعید

**د کتاب پېژندنه**

| | | |
|---|---|---|
| ❁ | د کتاب نوم | :علم الصرف **(اوّلین)** |
| ❁ | مؤلف | : مولانا مشتاق احمد صاحب |
| ❁ | ژباړن | : محمد رسول سعید |
| ❁ | خپرندوی | **: صداقت خپرندویه ټولنه/ کندهار** |
| ❁ | کمپوز / ډیزاین | : صداقت د کتاب چاپولو اداره |
| ❁ | چاپ کال | : ۱۳۹۳ش - ۲۰۱۴ |
| ❁ | دوهم چاپ | :۱۳۹۵ ش- ۲۰۱۶ |
| ❁ | چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |
| ❁ | د مخونو شمېر | : ۷۱ مخه |

**د تر لاسه کولو پته:**

**صداقت خپرندویه ټولنه**

کندهار - افغانستان

اړیکي: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

# فهرست

بِاسْمِهٖ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰی
حَامِدًا وَ مُصَلِّيًا وَ مُسَلِّمًا

## د علم صرف تعريف

علم صرف هغه علم دئ چي په هغه سره د صېغو پېژندنه کيږي، د الفاظو د گردان طريقه او د يوې صېغې څخه د بلي صېغې جوړولو قاعده معلوميږي .

**فائده**: د دغه علم فائده داده چي د الفاظو ويل په صحيح توګه زده کيږي .

## اصطلاحات

ضمه پېښ ته وايي.
فتحه زور او کسره زېر ته وايي.
تنوين دوه زوره، دوه زېره او دوو پېښو ته وايي.
حرکت د زور، زېر او پېښ نوم دئ.
سکون او جزم د حرکت نه درلودلو ته وايي.
**تشديد**: د يوه حرف دوه ځله په سکون او په حرکت سره ويل لکه عَضّ.
**مضموم**: هغه حرف دئ چي پر هغه باندي پېښ وي، مفتوح هغه حرف دئ چي پر هغه باندي زوَر وي او مکسور د زېر والا حرف ته وايي.
متحرک د حرکت لرونکي حرف نوم دئ.

ساکن هغه حرف دئ چي حرکت نه لري، مشدد هغه حرف دئ چي پر هغه باندي تشديد (شد) وي.

حروف علت درې دي: واو، الف، ياء، چي مجموعه ئې (واي) ده.

صېغه لفظ ته، اسم نامه ته او فعل کار ته وايي.

**زمانه:** د وخت نوم دئ او وختونه درې دي: ماضي (تېره سوې زمانه)، حال (اوسنۍ زمانه) او مستقبل (راتلونکې زمانه).

**فعل ماضي**: هغه فعل ته وايي چي تېره سوې زمانه وښيي، لکه ضَرَبَ (يو سړي وهل کړي دي په تېره زمانه کي)، د ماضي د پای حرف تل مفتوح (زور لرونکی) وي.

**فعل مضارع**: هغه فعل ته وايي چي اوسنۍ يا راتلونکې زمانه ښيي، لکه يَضْرِبُ (وهل کوي يا وهل به وکړي يو سړی په اوس يا راتلونکي وخت کي).

**امر**: هغه فعل ته وايي چي په هغه کي د يو کار کولو حکم ورکړل سي؛ لکه اِضْرِبْ (ته وهل وکړه).

**نهي**: هغه فعل ته وايي چي په هغه کي د يو کار کولو څخه منعه وکړل سي، لکه لاتَضْرِبْ (ته وهل مه کوه).

**اثبات، مثبت**: د يو فعل کېدو ته وايي لکه ضَرَبَ (هغه وهل وکړه)، يَضْرِبُ (هغه وهل کوي).

**نفي، منفي**: د يو کار نه کېدو ته وايي، لکه مَاضَرَبَ (هغه وهل ونه کړه)، لايَضْرِبُ (هغه وهل نه کوي).

**فاعل** : کار کونکي ته وایي .

**مفعول** : پر کوم چي کار کړل سوی وي، لکه ضَرَبَ زَیْدٌ عَمْرًوا، (عمر زید عمر وواهه) . دلته ضرب فعل دئ، زید فاعل دئ او عمروا مفعول دئ.

**فعل معروف** : هغه فعل دئ چي کوونکی ئې معلوم وي لکه : ضَرَبَ زَیْدٌ (زید وهل وکړه)، دلته وهونکی معلوم دئ او هغه زید دئ.

**فعل مجهُول**: هغه فعل دئ چي کوونکی ئې معلوم نه وي، لکه: ضُرِبَ
عَمْرٌو (عمرو ووهل سو)، دلته دا معلومه نه ده چي وهونکی څوک دئ

**فعل لازم**: هغه فعل دئ چي یوازي په فاعل پوره سي لکه : جَلَسَ زَیْدٌ (زید کښېناست)، ذَهَبَ عَمْرٌو (عمرو ولاړی) .

**فعل مُتعدي** : هغه فعل دئ چي په فاعل او مفعول دواړو پوره سي لکه: ضَرَبَ زَیْدٌ عَمْرًوا (زید عمرو وواهه) .

**غائب**: هغه څوک دئ چي د خبرو کولو په وخت کي موجود نه وي

**حاضر** : هغه څوک دئ چي د هغه سره خبري کیږي .

**متکلم**: خبري کوونکي ته وایي.

واحد یوه ته، تثنیه دوو ته او جمع تر دوو زیاتو ته وایي .

**حرف اصلي**: هغه ته وایي چي په وزن کي د فا، عین او یاء پر ځای وي، نو کوم حرف چي د فاء پر ځای وي هغه ته د فاء کلمه او کوم چي د عین پر ځای وي هغه ته د عین کلمه او کوم چي د لام پر ځای وي هغه ته

د لام کلمه وايي، لکه نَصَرَ چي د فَعَلَ پر وزن دئ، دلته نون د فاء کلمه، صاد د عين کلمه او راء د لام کلمه ده.

**حرف زائد**: هغه حرف ته وايي چي د فاء، عين او لام کلمې پر ځای نه وي، لکه اجْـتَـنَـبَ چي د اِفْتَعَلَ پر وزن دئ، دلته ساکن جيم د فاء پر ځای، مفتوح نون د عين پر ځای او مفتوحه باء د لام پر ځای دي، نو ج ن ب حروف اصلي سول او پاته حروف يعني همزه او تاء زائد سوه.

## افعال، د هغوئ صيغې او ګردانونه

په عربي ژبه کي د فعل ماضي او نورو څورلس صيغې وي چي تفصيل ئې دادئ:

درې د مذکر غائب لپاره — درې د مؤنث غائب لپاره

درې د مذکر حاضر لپاره — درې د مؤنث حاضر لپاره

دوې د متکلم لپاره

د متکلم اوله صيغه د واحد مذکر او واحد مؤنث لپاره راځي، دوهمه صيغه د تثنيه مذکر، مونث، جمع مذکر او جمع مؤنث لپاره استعماليږي.

## فصل: د فعل ماضي صيغې

| صيغې | بحث اثبات | | | |
|---|---|---|---|---|
| | فعل ماضي معروف | معنی | فعل ماضي مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | فَعَلَ | هغه يو سړي کار وکړ | فُعِلَ | په يو سړي کار وسو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تثنیه مذکر غائب | فَعَلَا | هغه دوو کسانو وکړ | فُعِلَا | په دوو سړیانو وسو |
| جمع مذکر غائب | فَعَلُوْا | هغه ډېرو کسانو وکړ | فُعِلُوْا | په ډېرو سړیانو وسو |
| واحد مؤنث غائب | فَعَلَتْ | هغه یوې ښځي وکړ | فُعِلَتْ | په یوې ښځي وسو |
| تثنیه مؤنث غائب | فَعَلَتَا | هغه دوو ښځو وکړ | فُعِلَتَا | په دوو ښځو وسو |
| جمع مؤنث غائب | فَعَلْنَ | هغه ډېرو ښځو وکړ | فُعِلْنَ | په ډېرو ښځو وسو |
| واحد مذکر حاضر | فَعَلْتَ | تا یو سړي وکړ | فُعِلْتَ | په تا یو سړي وسو |
| تثنیه مذکر حاضر | فَعَلْتُمَا | تاسو دوو سړیانو وکړ | فُعِلْتُمَا | په تاسو دوو سړیانو وسو |
| جمع مذکر حاضر | فَعَلْتُمْ | تاسو ډېرو سړیانو وکړ | فُعِلْتُمْ | په تاسو ډېرو سړیانو وسو |
| واحد مؤنث حاضر | فَعَلْتِ | تا یوې ښځي وکړ | فُعِلْتِ | په تا یوې ښځي وسو |
| تثنیه مؤنث حاضر | فَعَلْتُمَا | تاسو دوو ښځو وکړ | فُعِلْتُمَا | په تاسو دوو ښځو وسو |
| جمع مؤنث | فَعَلْتُنَّ | تاسو ډېرو | فُعِلْتُنَّ | په تاسو ډېرو |

| حاضر | | ښځو وکړ | | ښځو وسو |
|---|---|---|---|---|
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | فَعَلْتُ | ما یو سړي یا ښځي وکړ | فُعِلْتُ | په ما یو سړي یا ښځي وسو |
| تثنیه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | فَعَلْنَا | موږ دوو یا ډیرو نارینوو یا ښځو وکړ | فُعِلْنَا | په موږ دوو یا ډیرو سړیانو یا ښځو وسو |

| صیغې | بحث نفي | | | |
|---|---|---|---|---|
| | فعل ماضي معروف | معنی | فعل ماضي مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | مَافَعَلَ | یو سړي کار نه دی کړی | مَافُعِلَ | په یوه سړي نه کار ندی سوی |
| تثنیه مذکر غائب | مَافَعَلَا | دوو سړیانو نه دي کړي | مَافُعِلَا | په دوو خلګو نه دي سوي |
| جمع مذکر غائب | مَافَعَلُوْا | ډیرو سړیانو نه دي کړي | مَافُعِلُوْا | په ډیرو خلګو نه دي سوي |
| واحد مؤنث غائب | مَافَعَلَتْ | یوې ښځي نه دي کړي | مَافُعِلَتْ | په یوې ښځي نه دي سوي |
| تثنیه مؤنث غائب | مَافَعَلَتَا | دوو ښځو نه دي کړي | مَافُعِلَتَا | په دوو ښځو نه دي سوي |

| جمع مؤنث غائب | مَافَعَلْنَ | ډېرو ښځو نه دي کړي | مَافُعِلْنَ | په ډېرو ښځو نه دي سوي |
|---|---|---|---|---|
| واحد مذکر حاضر | مَافَعَلْتَ | تا يوه سړي نه دی کړي | مَافُعِلْتَ | په تا يوه سړي نه دی سوی |
| تثنيه مذکر حاضر | مَافَعَلْتُمَا | تاسو دوو خلکو نه دي کړي | مَافُعِلْتُمَا | په تاسو دوو سړيانو نه دي سوي |
| جمع مذکر حاضر | مَافَعَلْتُمْ | تاسو ډېرو خلکو نه دي کړي | مَافُعِلْتُمْ | په تاسو ډېرو سړيانو نه دي سوي |
| واحد مؤنث حاضر | مَافَعَلْتِ | تا يوې ښځي نه دي کړي | مَافُعِلْتِ | په تا يوې ښځي نه دي سوي |
| تثنيه مؤنث حاضر | مَافَعَلْتُمَا | تاسو دوو ښځو نه دي کړي | مَافُعِلْتُمَا | په تاسو دوو ښځو نه دي سوي |
| جمع مؤنث حاضر | مَافَعَلْتُنَّ | تاسو ډېرو ښځو نه دي کړي | مَافُعِلْتُنَّ | په تاسو ډېرو ښځو نه دي سوي |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | مَافَعَلْتُ | ما يوه سړي يا ښځي نه دی کړي | مَافُعِلْتُ | په ما يوه سړي يا ښځي نه دی سوی |
| تثنيه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | مَافَعَلْنَا | موږ دوو يا ډېرو خلکو يا ښځو نه دي کړي | مَافُعِلْنَا | په موږ دوو يا ډېرو خلکو يا ښځو نه دي سوي |

**فائده**: د ماضي واحد مذکر غائب په آخر کي د الف په زیاتولو سره تثنیه مذکر غائب جوړیږي، لکه د فعل څخه فعلا، او د واو او دهغه څخه مخکي د پیښ په لګولو سره جمع مذکر غائب جوړیږي لکه فَعَلُوا، او د تاء ساکن په زیاتولو سره واحد مؤنث غائب لکه فَعَلَتْ او د تاء او الف په زیاتولو سره تثنیه مؤنث غائب جوړیږي لکه فَعَلَتَا.

همدغه کار په هر فعل ماضي کي وکړئ لکه د اِجْتَنَبَ څخه اِجْتَنَبَا، اِجْتَنَبُوْا، اِجْتَنَبَتْ او اِجْتَنَبَتَا، جوړیږي.

او د واحد مذکر غائب د آخري حرف په ساکن کولو سره او د نون مفتوح په یوځای کولو سره جمع مؤنث غائب (فَعَلْنَ)، او د تاء مفتوحه په یو ځای کولو سره واحد مذکر حاضر (فَعَلْتَ) او په تُمَا سره تثنیه مذکر حاضر (فَعَلْتُمَا) او په تُم سره جمع مذکر حاضر (فَعَلْتُمْ) او په تاء مکسور سره واحد مؤنث حاضر (فَعَلْتِ) او په تُمَا سره تثنیه مؤنث حاضر (فَعَلْتُمَا) او په تُنّ سره جمع مؤنث حاضر (فَعَلْتُنَّ) او په تاء مضموم سره واحد مذکر و مؤنث متکلم (فَعَلتُ) او په نَا سره تثنیه او جمع مذکر او مؤنث متکلم (فَعَلْنَا) جوړیږي.

همدغه عمل په هره ماضي کي وکړئ لکه : د اِجْتَنَبَ څخه اِجْتَنَبْنَ، اِجْتَنَبْتَ، اِجْتَنَبْتُمَا، اِجْتَنَبْتُمْ، اِجْتَنَبْتِ، اِجْتَنَبْتُمَا، اِجْتَنَبْتُنَّ، اِجْتَنَبْتُ، اِجْتَنَبْنَا. جوړیږي.

## د ماضي مجهول د جوړولو طريقه

د ماضي معروف د واحد مذكر غائب صېغې آخري حرف پر خپل حال پرېږدئ او د آخري حرف تر څنګ حرف ته زېر ورکړئ كه چيري زېر نه وي او پاته شومره حركت لرونكي حروف چي وي كه يو وي يا دوه تولو ته پېښ وركړئ ، د ماضي مجهول واحد مذكر غائب صيغه جوړيږي، لكه د ضَرَبَ څخه ضُرِبَ ، او د سَمِعَ څخه سُمِعَ او د اَكْرَمَ څخه أُكْرِمَ او د اِجْتَنَبَ څخه اُجْتُنِبَ ، بيا د پاته صېغو د جوړولو لپاره هم هغه طريقه اختيار کړئ کوم چي په ماضي معروف كي بيان سوه .

**فائده**: د ماضي مثبت په پيل كي د ما په يو ځای كولو سره ماضي منفي جوړيږي .

## تمرين

الف: د لاندي افعالو څلور وزنونه د پورتنی نقشې مطابق سره د معنی بيان کړئ :

كَتَبَ (هغه وليکل)، مَنَعَ (هغه منعه کړ)، ، اِجْتَنَبَ (هغه پرهېز وكړ)، عَلِمَ (هغه پوه سو) ، تَرَكَ (هغه پرېښود ل)

ب : د لاندي الفاظو معنی بيان کړئ :

مَا كَتَبُوْا، مَنَعْتُمْ، اِجْتَنَبْتُنَّ، مَا تَرَكَ ، مَنَعْنَ ،

ج : لاندي جملې په عربي وليكئ :

ما منعه نه کړ، هغه دوو كسانو منعه کړ، هغه ټولو ښځو پرهيز وكړ، مور نه پرېښود ، هغه دوې ښځي پوه سوې .

## فصل : د فعل مضارع بیان

فعل مضارع معروف د فعل ماضي معروف څخه جوړيږي . د جوړولو لنډه طريقه به يې د ګردان وروسته بيان سي :

| صيغې | بحث اثبات | | | |
|---|---|---|---|---|
| | فعل مضارع معروف | معنی | فعل مضارع مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | يَفْعَلُ | کار کوي يا به يې وکړي يو سړی | يُفْعَلُ | کار کېږي يا به وسي په يوه سړي |
| تثنيه مذکر غائب | يَفْعَلَانِ | کار کوي يا به يې وکړي دوه خلګ | يُفْعَلَانِ | کيږي يا به وسي په دوو خلګو |
| جمع مذکر غائب | يَفْعَلُوْنَ | کار کوي يا به يې وکړي ډېر خلګ | يُفْعَلُوْنَ | کيږي يا به وسي په ډېرو خلګو |
| واحد مؤنث غائب | تَفْعَلُ | کار کوي يا به يې وکړي يوه ښځه | تُفْعَلُ | کيږي يا به وسي په يوې ښځي |
| تثنيه مؤنث غائب | تَفْعَلَانِ | کار کوي يا به يې وکړي دوې ښځي | تُفْعَلَانِ | کار کيږي يا به وسي په دوو ښځو |
| جمع مؤنث غائب | يَفْعَلْنَ | کار کوي يا به يې وکړي ډېري ښځي | يُفْعَلْنَ | کار کيږي يا به وسي په ډېرو ښځو |

| واحد مذکر حاضر | تَفْعَلُ | کار کوې یا به یې وکړې ته یو سړی | تُفْعَلُ | کار کیږي یا به وسي په تا یوه سړي |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| تثنیه مذکر حاضر | تَفْعَلَانِ | کار کوئ یا به یې وکړئ تاسو دوه خلګ | تُفْعَلَانِ | کیږي یا به وسي په تاسو دوو خلګو |
| جمع مذکر حاضر | تَفْعَلُوْنَ | کار کوئ یا به یې وکړئ تاسو ډېر خلګ | تُفْعَلُوْنَ | کیږي یا به وسي په تاسو ډېرو خلګو |
| واحد مؤنث حاضر | تَفْعَلِيْنَ | کار کوې یا به یې وکړې ته یوه ښځه | تُفْعَلِيْنَ | کیږي یا به وسي په تا یوې ښځې |
| تثنیه مؤنث حاضر | تَفْعَلَانِ | کار کوئ یا به یې وکړئ تاسو دوې ښځې | تُفْعَلَانِ | کیږي یا به وسي په تاسو دوو ښځو |
| جمع مؤنث حاضر | تَفْعَلْنَ | کار کوئ یا به یې وکړئ تاسو ډېرې ښځې | تُفْعَلْنَ | کیږي یا به وسي په تاسو ډېرو ښځو |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | اَفْعَلُ | کار کوم یا به یې وکړم زه یو سړی یا ښځه | اُفْعَلُ | کیږي یا به وسي په ما یو سړي یا ښځې |
| تثنیه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | نَفْعَلُ | کار کوو یا به یې وکړو موږ دوه یا ډېر خلګ یا ښځې | نُفْعَلُ | کیږي یا به وسي په موږ دوو یا ډېرو خلګو یا ښځو |

| صيغې | بحث نفي | | | |
|---|---|---|---|---|
| | فعل مضارع معروف | معنى | فعل مضارع مجهول | معنى |
| واحد مذكر غائب | لَايَفْعَلُ | كار نه كوي يا به ئې نه وكړي يو سړى | لَايُفْعَلُ | كار كېږي يا به وسي په يوه سړي |
| تثنيه مذكر غائب | لَايَفْعَلَانِ | نه كوي يا به ئې نه وكړي دوه خلګ | لَايُفْعَلَانِ | كېږي يا به وسي په دوو خلګو |
| جمع مذكر غائب | لَايَفْعَلُوْنَ | نه كوي يا به ئې نه وكړي ډېر خلګ | لَايُفْعَلُوْنَ | كېږي يا به وسي په ډېرو خلګو |
| واحد مؤنث غائب | لَاتَفْعَلُ | نه كوي يا به ئې نه وكړي يوه ښځه | لَاتُفْعَلُ | نه كېږي يا به نه وسي په يوې ښځې |
| تثنيه مؤنث غائب | لَاتَفْعَلَانِ | نه كوي يا به ئې نه وكړي دوې ښځې | لَاتُفْعَلَانِ | نه كېږي يا به نه وسي په دوو ښځو |
| جمع مؤنث غائب | لَايَفْعَلْنَ | نه كوي يا به ئې نه وكړي ډيري ښځې | لَايُفْعَلْنَ | نه كېږي يا به نه وسي په ډېرو ښځو |
| واحد مذكر حاضر | لَاتَفْعَلُ | نه كوې يا به ئې نه وكړې ته يو سړى | لَاتُفْعَلُ | نه كېږي يا به نه وسي په تا يو سړي |

| تثنیه مذکر حاضر | لَاتَفْعَلَانِ | نه کوئ یا به ئې نه وکړئ تاسو دوه خلګ | لَاتُفْعَلَانِ | نه کیږي یا به نه وسي په تاسو دوو خلګو |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| جمع مذکر حاضر | لَاتَفْعَلُوْنَ | نه کوئ یا به ئې نه وکړئ تاسو ډېر خلګ | لَاتُفْعَلُوْنَ | نه کیږي یا به نه وسي په تاسو ډېرو خلګو |
| واحد مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلِيْنَ | نه کوې یا به ئې نه وکړې ته یوه ښځه | لَاتُفْعَلِيْنَ | نه کیږي یا به نه وسي په تا یوې ښځې |
| تثنیه مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلَانِ | نه کوئ یا به ئې نه وکړئ تاسو دوې ښځې | لَاتُفْعَلَانِ | نه کیږي یا به نه وسي په تاسو دوو ښځو |
| جمع مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلْنَ | نه کوئ یا به ئې نه وکړئ تاسو ډېرې ښځې | لَاتُفْعَلْنَ | نه کیږي یا به نه وسي په تاسو ډېرو ښځو |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لَااَفْعَلُ | نه کوم یا به یې نه وکړم زه یو سړی یا ښځه | لَااُفْعَلُ | نه کیږي یا به نه وسي په ما یوه سړي یا ښځې |
| تثنیه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لَانَفْعَلُ | نه کوو یا به ئې نه وکړو موږ دوه یا ډېر خلګ یا ښځې | لَانُفْعَلُ | نه کیږي یا به نه وسي په موږ دوو یا ډېرو خلګو یا ښځو |

**قاعده**: د ماضي په پيل کي يو حرف د ثلورو حروفو څخه زيات کړه، هغه ثلور حروف دادي: (الف، تا، يا، ن) چي مجموعه يې (اتين) دی، دغه ثلورو حروفو ته د مضارع علامت وايي، الف يوازي د يوې صېغې يعني واحد مذکر ومؤنث متکلم په سر کي راځي، او تاء په اتو صېغو کي يعني، درې مذکر حاضر، درې مؤنث حاضر، دوې مؤنث غائب، او ياء د مذکر غائب په درو صېغو او جمع مؤنث غائب کي، او نون په تثنيه او جمع مذکر او مؤنث متکلم په سر کي راوړه.

د مضارع په آخر کي پنځو صېغو ته پېښ ورکړه، هغه پنځه صېغې دادي: واحد مذکر غائب، واحد مؤنث غائب، واحد مذکر حاضر، واحد متکلم، تثنيه او جمع متکلم.

او و(۷) صېغو ته نون اعرابي ورکړه او هغه اووه صېغې دادي: ثلور د تثنيې چي په هغو کي نون اعرابي مکسور (زېر لرونکی) وي، دوې د جمع مذکر غائب او جمع مذکر حاضر، يو د واحد مؤنث حاضر چي په هغه کي نون اعرابي مفتوح (زور لرونکی) وي او نون جمع مؤنث لکه چي په ماضي کي هم راتلی، په مضارع کي هم راځي.

## د مضارع مجهول جوړولو قاعده

د مضارع علامت ته پېښ ورکړه که يې چيري پېښ نه درلودی، او د آخر څخه لومړني حرف ته زور ورکړئ که چيري زور نه وي، نور پر خپل حالت پرېږدئ نو مضارع مجهوله به جوړه سي، لکه د يَضْرِبُ څخه يُضْرَبُ، د يَسْمَعُ څخه يُسْمَعُ، د يُكْرِمُ څخه يُكْرَمُ او د يَجْتَنِبُ څخه يُجْتَنَبُ.

**فائده:** پر مضارع مثبت باندي د لا په راوړلو سره مضارع منفي جوړیږي لکه لَایَضْرِبُ : هغه وهل نه کوي.

## تمرين

۱- د فعل مضارع هغه صیغې وښیاست چي په آخر کي ئې پېښن راځي.

۲- د فعل مضارع د کومو صیغو په آخر کي نون اعرابي راځي؟

۳- نون اعرابي په کومو صیغو کي مفتوح او په څو صیغو کي مکسور وي؟

۴- د لاندنیو افعالو پوره صیغې د پورتنی نقشې سره سم ولیکئ:

یَجْتَنِبُ، یَکْتُبُ، یَسْمَعُ، یَعْلَمُ، یَمْنَعُ.

۵- د لاندي صیغو معناوي ولیکئ:

لَایَکْتُبُوْنَ، یَسْمَعُوْنَ، تَعْلَمِیْنَ، یَکْتُبْنَ، نَمْنَعُ، اَتْرُكُ.

۶- لاندي ترجمې په عربي ژبه ولیکئ:

موږ لیکل کوو، هغه ټول خلک پوهیږي، زه منع کېږم، تاسو ټول خلک ئې پرېږدئ، هغه ټولي ښځي یې اوري، ته یوه ښځه منعه کېږې، تاسو دوه خلک لیکل کوئ. تاسو دوې ښځي لیکل کوئ، تاسو ټولي ښځي اورېدل کوئ، موږ منعه کېږو، زه یوه ښځه اورېدل کوم، هغه دوې ښځي لیکل کوي، موږ پوهېږو.

## فصل:
# نفي تاکيد په لن او نفي جحد په لم

| صيغې | بحث نفي تاکيد په لن فعل مستقبل | | | |
|---|---|---|---|---|
| | نفي په لن معروف | معنی | نفي په لن مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | لَنْ يَّفْعَلَ | هيڅکله کار نه کوي يو سړی | لَنْ يُّفْعَلَ | هېڅکله کار نه کيږي په يوه سړي |
| تثنيه مذکر غائب | لَنْ يَّفْعَلَا | هيڅکله نه کوي دوه خلگ | لَنْ يُّفْعَلَا | هيڅکله نه کيږي په دوو خلگو |
| جمع مذکر غائب | لَنْ يَّفْعَلُوْا | هيڅکله نه کوي ډېر خلگ | لَنْ يُّفْعَلُوْا | هېڅکله نه کيږي په ډېرو خلگو |
| واحد مؤنث غائب | لَنْ تَفْعَلَ | هيڅکله نه کوي يوه ښځه | لَنْ تُفْعَلَ | هيڅکله نه کيږي په يوې ښځي |
| تثنيه مؤنث غائب | لَنْ تَفْعَلَا | هيڅکله نه کوي دوې ښځي | لَنْ تُفْعَلَا | هيڅکله نه کيږي په دوو ښځو |
| جمع مؤنث غائب | لَنْ يَّفْعَلْنَ | هيڅکله نه کوي ډېري ښځي | لَنْ يُّفْعَلْنَ | هېڅکله نه کيږي په ډېرو ښځو |

| واحد مذکر حاضر | لَنْ تَفْعَلَ | هیڅکله نه کوې ته یو سړی | لَنْ تُفْعَلَ | هېڅکله نه کیږې په تا یو سړې |
|---|---|---|---|---|
| تثنیه مذکر حاضر | لَنْ تَفْعَلَا | هیڅکله نه کوئ تاسو دوه خلک | لَنْ تُفْعَلَا | هېڅکله نه کیږې په تاسو دوو خلکو |
| جمع مذکر حاضر | لَنْ تَفْعَلُوْا | هیڅکله نه کوئ تاسو ډېر خلک | لَنْ تُفْعَلُوْا | هېڅکله نه کیږې په تاسو ډېرو خلکو |
| واحد مؤنث حاضر | لَنْ تَفْعَلِيْ | هیڅکله نه کوې ته یوه ښځه | لَنْ تُفْعَلِيْ | هېڅکله نه کیږې په تا یوې ښځې |
| تثنیه مؤنث حاضر | لَنْ تَفْعَلَا | هیڅکله نه کوئ تاسو دوې ښځې | لَنْ تُفْعَلَا | هېڅکله نه کیږې په تاسو دوو ښځو |
| جمع مؤنث حاضر | لَنْ تَفْعَلْنَ | هیڅکله نه کوئ تاسو ډېرې ښځې | لَنْ تُفْعَلْنَ | هېڅکله نه کیږې په تاسو ډېرو ښځو |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لَنْ اَفْعَلَ | هیڅکله نه کوم زه یو سړی یا ښځه | لَنْ اُفْعَلَ | هېڅکله کار نه کیږې په ما یوه سړې یا ښځې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تثنيه وجمع مذكر ومؤنث متكلم | لَنْ نَفْعَلَ | هيڅكله نه كوو موږ دوه يا ډېر خلك يا ښځې | لَنْ نُفْعَلَ | هېڅكله كار نه كيږي په موږ دوو يا ډېرو خلكو يا ښځو |

| صيغې | بحث نفي جحد په لم فعل ماضي | | | |
|---|---|---|---|---|
| | جحد معروف | معنی | جحد مجهول | معنی |
| واحد مذكر غائب | لَمْ يَفْعَلْ | نه دی كړی يوه سړي كار | لَمْ يُفْعَلْ | نه دي سوي په يوه سړي كار |
| تثنيه مذكر غائب | لَمْ يَفْعَلَا | نه دي كړي دوو خلكو | لَمْ يُفْعَلَا | نه دي سوي په دوو خلكو |
| جمع مذكر غائب | لَمْ يَفْعَلُوْا | نه دي كړي ډېرو خلكو | لَمْ يُفْعَلُوْا | نه دي سوي په ډېرو خلكو |
| واحد مؤنث غائب | لَمْ تَفْعَلْ | نه دي كړي يوې ښځې | لَمْ تُفْعَلْ | نه دي سوي په يوې ښځې |
| تثنيه مؤنث غائب | لَمْ تَفْعَلَا | نه دي كړي دوو ښځو | لَمْ تُفْعَلَا | نه دي سوي په دوو ښځو |
| جمع مؤنث غائب | لَمْ يَفْعَلْنَ | نه دي كړي ډېرو ښځو | لَمْ يُفْعَلْنَ | نه دي سوي په ډېرو ښځو |
| واحد مذكر حاضر | لَمْ تَفْعَلْ | نه دي كړي تا يو سړي | لَمْ تُفْعَلْ | نه دي سوي په تا يو سړي |

| تثنیه مذکر حاضر | لَمْ تَفْعَلَا | نه دي کړي تاسو دوو خلکو | لَمْ تُفْعَلَا | نه دي سوي په تاسو دوو ښځو |
|---|---|---|---|---|
| جمع مذکر حاضر | لَمْ تَفْعَلُوْا | نه دي کړي تاسو ډېرو خلکو | لَمْ تُفْعَلُوْا | نه دي سوي په تاسو ډېرو ښځو |
| واحد مؤنث حاضر | لَمْ تَفْعَلِيْ | نه دي کړي تا یوې ښځي | لَمْ تُفْعَلِيْ | نه دي سوي په تا یوې ښځي |
| تثنیه مؤنث حاضر | لَمْ تَفْعَلَا | نه دي کړي تاسو دوو ښځو | لَمْ تُفْعَلَا | نه دي سوي په تاسو دوو ښځو |
| جمع مؤنث حاضر | لَمْ تَفْعَلْنَ | نه دي کړي تاسو ډېرو ښځو | لَمْ تُفْعَلْنَ | نه دي سوي په تاسو ډېرو ښځو |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لَمْ اَفْعَلْ | نه دي کړي ما یو سړي یا ښځي | لَمْ اُفْعَلْ | نه دي سوي په ما یو سړي یا ښځي |
| تثنیه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لَمْ نَفْعَلْ | نه دي کړي موږ دوو یا ډېرو خلکو یا ښځو | لَمْ نُفْعَلْ | نه دي سوي په موږ دوو یا ډېرو خلکو یا ښځو |

**قاعده : ۱-** لن د مضارع مثبت په سر کي راوړه او د واحد مذکر غائب، واحد مؤنث غائب، واحد مذکر حاضر او متکلم ددواړو صيغو پر آخر حرف د پېښ پر ځای زوَر راوړه، او د اوو صيغو څخه نون اعرابي

ایسته کړه او په دوو صېغو کي د جمع مؤنث نون پرېږده، نو نفي د تاکید به په لن جوړ سي ، لن فعل مضارع د خالص مستقبل په معنی کي کوي.

**قاعده : ۲-** لم د مضارع مثبت په سر کي راوړه او د کومو پنځو صېغو په آخر کي چي پېښ دی په هغو ټولو کي د پېښ پر ځای جزم (وړغندی) راوړه که چیري حرف علت نه وي لکه : لَمْ يَنْصُرْ، لَمْ يَضْرِبْ، لَمْ يَسْمَعْ، او که چیري حرف علت وي نو هغه ایسته کړه لکه: د يَدْعُوْا څخه لَمْ يَدْعُ، د يَرْمِيْ څخه لَمْ يَرْمِ، د يَخْشٰى څخه لَمْ يَخْشَ، او په اوو صېغو کي نون اعرابي ایسته کړه ، په دوو صېغو کي د جمع مؤنث نون پرېږده نو نفي په لم به جوړ سي، لم فعل مضارع د ماضي منفي په معنی کوي.

## تمرین

۱- لن او لم په لفظو کي څه عمل کوي او په معناوو کي څه عمل کوي؟

۲- د لاندنیو الفاظو ټولي صېغې د پورتني نقشې مطابق ولیکئ:

لَنْ يَجْتَنِبَ، لَنْ يَسْمَعَ، لَمْ يَكْتُبْ، لَمْ يَعْلَمْ

۳- د لاندي صېغو معنی وښیاست :

لَنْ يَفْعَلُوْا، لَمْ يَفْعَلُوْا، لَنْ اَسْمَعَ، لَمْ يَجْتَنِبُوْا، لَمْ يُتْرَكْنَ.

۴- لاندي پښتو جملې په عربي ژبه ترجمه کړئ؟

زه هیڅکله لیکل نه کوم، هغه ښځه هیڅکله نه اوري، تاسو دوو خلکو پرهیز نه وکړ، تاسو ټول خلک نه پرهېښودل کیږئ. موږ ونه لیکل، ته

یوه ښځه هیڅکله نه اورې، تا یوې ښځې نه واورېدل، تاسو ډېرې ښځې هیڅکله نه پرېښودل کیږئ، تاسو ټولې ښځې هیڅکله نه پرېښودل سواست.

## فصل: لام تاکید بانون تاکید

| صیغې | لام تاکید بانون ثقیله فعل مستقبل | | | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | معنی | مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | لَيَفْعَلَنَّ | یو سړی به کار خامخا وکړي | لَيُفْعَلَنَّ | په یو سړي به کار خامخا وسي |
| تثنیه مذکر غائب | لَيَفْعَلَانِّ | دوه خلک به یې خامخا وکړي | لَيُفْعَلَانِّ | په دوو خلگو به خامخا وسي |
| جمع مذکر غائب | لَيَفْعَلُنَّ | ډېر خلک به یې خامخا وکړي | لَيُفْعَلُنَّ | په ډېرو خلگو به خامخا وسي |
| واحد مؤنث غائب | لَتَفْعَلَنَّ | یوه ښځه به یې خامخا وکړي | لَتُفْعَلَنَّ | په یوې ښځې به خامخا وسي |
| تثنیه مؤنث غائب | لَتَفْعَلَانِّ | دوې ښځې به یې خامخا وکړي | لَتُفْعَلَانِّ | په دوو ښځو به خامخا وسي |
| جمع مؤنث غائب | لَيَفْعَلْنَانِّ | ډیرې ښځې به یې مخاما وکړي | لَيُفْعَلْنَانِّ | په ډېرو ښځو به خامخا وسي |
| واحد مذکر حاضر | لَتَفْعَلَنَّ | ته یو سړی به یې خامخا وکړې | لَتُفْعَلَنَّ | په تا یو سړي به خامخا وسي |

| تثنیه مذکر حاضر | لَتَفْعَلَانِّ | تاسو دوه خلک به یې خامخا وکړئ | لَتُفْعَلَانِّ | په تاسو دوو خلکو به خامخا وسي |
|---|---|---|---|---|
| جمع مذکر حاضر | لَتَفْعَلُنَّ | تاسو ډېر خلک به یې خامخا وکړئ | لَتُفْعَلُنَّ | په تاسو ډېرو خلکو به خامخا وسي |
| واحد مؤنث حاضر | لَتَفْعَلِنَّ | ته یوه ښځه به یې خامخا وکړې | لَتُفْعَلِنَّ | په تا یوې ښځې به خامخا وسي |
| تثنیه مؤنث حاضر | لَتَفْعَلَانِّ | تاسو دوې ښځې به یې خامخا وکړئ | لَتُفْعَلَانِّ | په تاسو دوو ښځو به خامخا وسي |
| جمع مؤنث حاضر | لَتَفْعَلْنَانِّ | تاسو ډېرې ښځې به یې خامخا وکړئ | لَتُفْعَلْنَانِّ | په تاسو ډېرو ښځو به خامخا وسي |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لَاَفْعَلَنَّ | زه یو سړی یا ښځه به یې خامخا وکړم | لَاُفْعَلَنَّ | په ما یو سړي یا ښځې به خامخا وسي |
| تثنیه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لَنَفْعَلَنَّ | موږ دوه یا ډېر خلک یا ښځې به یې خامخا وکړو | لَنُفْعَلَنَّ | په موږ دوو یا ډېرو خلکو یا ښځو به خامخا وسي |

| صیغې | لام تاکید بانون خفیفه فعل مستقبل | | | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | معنی | مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | لَیَفْعَلَنْ | یو سړی به کار خامخا وکړي | لَیُفْعَلَنْ | په یو سړي به کار خامخا وسي |
| تثنیه مذکر غائب | | | | |
| جمع مذکر غائب | لَیَفْعَلُنْ | ډېر خلک به یې خامخا وکړي | لَیُفْعَلُنْ | په ډېرو خلکو به خامخا وسي |
| واحد مؤنث غائب | لَتَفْعَلَنْ | یوه ښځه به یې خامخا وکړي | لَتُفْعَلَنْ | په یوې ښځې به خامخا وسي |
| تثنیه مؤنث غائب | | | | |
| جمع مؤنث غائب | | | | |
| واحد مذکر حاضر | لَتَفْعَلَنْ | ته یو سړی به یې خامخا وکړې | لَتُفْعَلَنْ | په تا یو سړي به خامخا وسي |
| تثنیه مذکر حاضر | | | | |
| جمع مذکر حاضر | لَتَفْعَلُنْ | تاسو ډېر خلک به یې خامخا وکړئ | لَتُفْعَلُنْ | په تاسو ډېرو خلکو به خامخا وسي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| واحد مؤنث حاضر | لَتَفْعَلِنْ | ته یوه ښځه به یې خامخا وکړې | لَتُفْعَلِنْ | په تا یوې ښځي به خامخا وسي |
| تثنیه مؤنث حاضر | | | | |
| جمع مؤنث حاضر | | | | |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لَاَفْعَلَنْ | زه یو سړی یا ښځه به یې خامخا وکړم | لَاُفْعَلَنْ | په ما یو سړي یا ښځي به خامخا وسي |
| تثنیه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لَنَفْعَلَنْ | موږ دوه یا ډېر خلګ یا ښځي به یې خامخا وکړو | لَنُفْعَلَنْ | په موږ دوو یا ډېرو خلګو یا ښځو به خامخا وسي |

**قاعده**: نون تاکید پر دوه ډوله وي: نون ثقیله او نون خفیفه،

**نون ثقیله**: مشدد (شد لرونکي) نون ته وایي.

**نون خفیفه**: ساکن (وړغندي لرونکي) نون ته وایي.

نون ثقیله په څوارلس صیغو کي راځي او نون خفیفه یوازي په اتو صیغو کي راځي، په پاته شپږو صیغو کي چي د نون ثقیله مخکي الف وي نه راځي، لام تاکید همېشه مفتوح (زور لرونکی) وي.

د لام تاکید بانون ثقیله جوړولو قاعده داده چي د مضارع مثبت په سر کي لام تاکید او په آخر کي نون ثقیله راوړه، د اوو صیغو څخه نون اعرابي ایسته کړه، د جمع مذکر غائب او جمع مذکر حاضر د صیغو څخه واو، او د واحد مؤنث حاضر د صیغې څخه یاء ایسته کړه.

په جمع مؤنث غائب او جمع مؤنث حاضر کي د نون ثقیله څخه مخکي الف زیات کړه ددې لپاره چي د جمع مؤنث نون او نون ثقیله په یو ځای کېدو سره صیغه بدرنه نه سي، دغه الف ته الف فاصل وایي ځکه دا د جمع مؤنث او د تاکید نون سره جلا کوي.

د نون ثقیله څخه مخکي په شپږو صیغو کي یعني څلور تثنیې، جمع مؤنث غائب او جمع مؤنث حاضر کي الف وي، په جمع مذکر غائب او جمع مذکر حاضر کي د نون ثقیله څخه مخکي پېښ وي، په واحد مؤنث حاضر کي زېر وي او په پاته واحد مذکر غائب، واحد مؤنث غائب، واحد مذکر حاضر او متکلم په دواړو صیغو کي د نون ثقیله څخه مخکي زور وي.

د الف وروسته نون ثقیله مکسور (زېر لرونکی) وي او په پاته ټولو صیغو کي مفتوح (زور لرونکی).

د نون خفیفه هم هغه قاعده ده کوم چي د نون ثقیله ده، یوازي د ساکن او مشدد فرق سته.

## سوالونه

۱. د تېرو سوو افعالو لکه : يَجْتَنِبُ، يَسْمَعُ، يَتْرُكُ او داسي نورو څخه د نون ثقیله او خفیفه صیغې ولیکئ.

۲. لَيَفْعَلَنَّ، لَتَفْعَلِنَّ، لَيَفْعَلْنَانِّ دمضارع کومي صیغې دي او څرنګه جوړي سوي دي؟

۳. د: (تَفْعَلْنَ، تَفْعَلُوْنَ، يَفْعَلَانِ، اَفْعَلُ) څخه لام تاکید بانون

تاکید ثقیله و خفیفه جوړ کړئ:

۴. هغه کومي اووه صیغې دي چي نون اعرابي ور څخه ایسته کیږي؟

۵. الف فاصل څه ته وایي؟

٦. (لَيَجْتَنِبْنَانِّ، لَتَعْلَمُنَّ، لَنَسْمَعَنَّ، لَتَتْرُكُنَّ) دغه صیغې په پښتو ترجمه کړئ:

۷. لاندي پښتو جملې په عربي ولیکئ

موږ به یې خامخا ولیکو.

هغه دوه خلک به خامخا منع سي.

تاسو ډېري ښځي به خامخا منعه سئ.

هغه ډېر خلک به خامخا ولاړ سي.

تاسو دوې ښځي به یې خامخا واورئ.

هغه یوه ښځه به خامخا پرېښودل سي.

زه یو سړی یې خامخا اورم.

هغه ډېري ښځي به خامخا ولاړي سي.

## فصل: د امر صيغې

| صيغې | د فعل امر صيغې | | | |
|---|---|---|---|---|
| | امر معروف | معنی | مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | لِيَفْعَلْ | يو سړی دي کار وکړي | لِيُفْعَلْ | په يوه سړي دي کار وسي |
| تثنيه مذکر غائب | لِيَفْعَلَا | دوه خلک دي يې وکړي | لِيُفْعَلَا | په دوو خلکو دي وسي |
| جمع مذکر غائب | لِيَفْعَلُوْا | ډېر خلک دي يې وکړي | لِيُفْعَلُوْا | په ډېرو خلکو دي وسي |
| واحد مؤنث غائب | لِتَفْعَلْ | يوه ښځه دي يې وکړي | لِتُفْعَلْ | په يوې ښځې دي وسي |
| تثنيه مؤنث غائب | لِتَفْعَلَا | دوې ښځې دي يې وکړي | لِتُفْعَلَا | په دوو ښځو دي وسي |
| جمع مؤنث غائب | لِيَفْعَلْنَ | ډېرې ښځې دي يې وکړي | لِيُفْعَلْنَ | په ډېرو ښځو دي وسي |
| واحد مذکر حاضر | اِفْعَلْ | ته يو سړی يې وکړه | لِتُفْعَلْ | په تا يو سړي دي وسي |
| تثنيه مذکر حاضر | اِفْعَلَا | تاسو دوه خلک يې وکړئ | لِتُفْعَلَا | په تاسو دوو خلکو دي وسي |

| جمع مذکر حاضر | اِفْعَلُوْا | تاسو ډېر خلک يې وکړئ | لِتُفْعَلُوْا | په تاسو ډېرو خلکو دي وسي |
|---|---|---|---|---|
| واحد مؤنث حاضر | اِفْعَلِی | ته يوه ښځه يې وکړه | لِتُفْعَلِی | په تا يوې ښځي دي وسي |
| تثنيه مؤنث حاضر | اِفْعَلَا | تاسو دوې ښځي يې وکړئ | لِتُفْعَلَا | په تاسو دوو ښځو دي وسي |
| جمع مؤنث حاضر | اِفْعَلْنَ | تاسو ډېرې ښځي يې وکړئ | لِتُفْعَلْنَ | په تاسو ډېرو ښځو دي وسي |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لِاَفْعَلْ | زه يو سړی يا ښځه دي يې وکړم | لِاُفْعَلْ | په ما يو سړي يا ښځي دي وسي |
| تثنيه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لِنَفْعَلْ | موږ دوه يا ډېر خلک يا ښځي دي يې وکړو | لِنُفْعَلْ | په موږ دوو يا ډېرو خلکو يا ښځو دي وسي |

| صيغې | فعل امر بانون ثقيله | | | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | معنی | مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | لِيَفْعَلَنَّ | يو سړی دي کار خامخا وکړي | لِيُفْعَلَنَّ | په يوه سړي دي کار خامخا وسي |
| تثنيه مذکر غائب | لِيَفْعَلَانِّ | دوه خلک دي يې خامخا وکړي | لِيُفْعَلَانِّ | په دوو خلکو دي خامخا وسي |

| جمع مذکر غائب | لِيَفْعَلُنَّ | ډېر خلګ دي يې خامخا وکړي | لِيُفْعَلُنَّ | په ډېرو خلګو دي خامخا وسي |
|---|---|---|---|---|
| واحد مؤنث غائب | لِتَفْعَلَنَّ | يوه ښځه دي يې خامخا وکړي | لِتُفْعَلَنَّ | په يوې ښځې دي خامخا وسي |
| تثنيه مؤنث غائب | لِتَفْعَلَانِّ | دوې ښځې دي يې خامخا وکړي | لِتُفْعَلَانِّ | په دوو ښځو دي خامخا وسي |
| جمع مؤنث غائب | لِيَفْعَلْنَانِّ | ډېرې ښځې دي يې خامخا وکړي | لِيُفْعَلْنَانِّ | په ډېرو ښځو دي خامخا وسي |
| واحد مذکر حاضر | اِفْعَلَنَّ | ته يو سړی دي يې خامخا وکړې | لِتُفْعَلَنَّ | په تا يو سړي دي خامخا وسي |
| تثنيه مذکر حاضر | اِفْعَلَانِّ | تاسو دوه خلګ دي يې خامخا وکړئ | لِتُفْعَلَانِّ | په تاسو دوو خلګو دي خامخا وسي |
| جمع مذکر حاضر | اِفْعَلُنَّ | تاسو ډېر خلګ دي يې خامخا وکړئ | لِتُفْعَلُنَّ | په تاسو ډېرو خلګو دي خامخا وسي |
| واحد مؤنث حاضر | اِفْعَلِنَّ | ته يوه ښځه دي يې خامخا وکړې | لِتُفْعَلِنَّ | په تا يوې ښځې دي خامخا وسي |
| تثنيه مؤنث حاضر | اِفْعَلَانِّ | تاسو دوې ښځې دي يې خامخا وکړئ | لِتُفْعَلَانِّ | په تاسو دوو ښځو دي خامخا وسي |

| جمع مؤنث حاضر | اِفْعَلْنَانِّ | تاسو ډېري ښځي دي يې خامخا وکړئ | لِتُفْعَلْنَانِّ | په تاسو ډېرو ښځو دي خامخا وسي |
|---|---|---|---|---|
| واحد مذكر ومؤنث متكلم | لِاَفْعَلَنَّ | زه يو سړی يا ښځه دي يې خامخا وکړم | لِاُفْعَلَنَّ | په ما يو سړي يا ښځي دي خامخا وسي |
| تثنيه وجمع مذكر ومؤنث متكلم | لِنَفْعَلَنَّ | موږ دوه يا ډېر خلک يا ښځي دي يې خامخا وکړو | لِنُفْعَلَنَّ | په موږ دوو يا ډېرو خلكو يا ښځو دي خامخا وسي |

| صيغې | فعل امر بانون خفيفه | | | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | معنى | مجهول | معنى |
| واحد مذكر غائب | لِيَفْعَلَنْ | يو سړی دي كار خامخا وكړي | لِيُفْعَلَنْ | په يو سړي دي خامخا وسي |
| تثنيه مذكر غائب | | | | |
| جمع مذكر غائب | لِيَفْعَلُنْ | ډېر خلک دي يې خامخا وكړي | لِيُفْعَلُنْ | په ډېرو خلكو دي خامخا وسي |
| واحد مؤنث غائب | لِتَفْعَلَنْ | يوه ښځه دي يې خامخا وكړي | لِتُفْعَلَنْ | په يوې ښځي دي خامخا وسي |
| تثنيه مؤنث غائب | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| جمع مؤنث غائب | | | | |
| واحد مذکر حاضر | اِفْعَلَنْ | ته یو سړی دي یې خامخا وکړي | لِتُفْعَلُنْ | په تا یو سړي دي خامخا وسي |
| تثنیه مذکر حاضر | | | | |
| جمع مذکر حاضر | اِفْعُلُنْ | تاسو ډېر خلګ دي یې خامخا وکړئ | لِتُفْعَلُنْ | په تاسو ډېرو خلګو دي خامخا وسي |
| واحد مؤنث حاضر | اِفْعَلِنْ | ته یوه ښځه دي یې خامخا وکړې | لِتُفْعَلَنْ | په تا یوې ښځي دي خامخا وسي |
| تثنیه مؤنث حاضر | | | | |
| جمع مؤنث حاضر | | | | |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لِاَفْعَلَنْ | زه یو سړی یا ښځه دي یې خامخا وکړم | لِاُفْعَلَنْ | په ما یو سړي یا ښځي دي خامخا وسي |
| تثنیه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لِنَفْعَلَنْ | موږ دوه یا ډېر خلګ یا ښځي دي یې خامخا وکړو | لِنُفْعَلَنْ | په موږ دوو یا ډېرو خلګو یا ښځو دي خامخا وسي |

**قاعده:** فعل امر د فعل مضارع څخه جوړیږي، امر معروف د مضارع معروف څخه او امر مجهول د مضارع مجهول څخه، غائب د غائب

څخه، حاضر د حاضر څخه او متکلم د متکلم څخه. یعني د امر هره صیغه چي جوړول وي د مضارع د هغه صیغې څخه جوړیږي، تفصیل یې په لاندي ډول دئ:

امر غائب معروف د مضارع غائب معروف څخه جوړیږي.

امر غائب مجهول د مضارع غائب مجهول څخه جوړیږي.

امر حاضر معروف د مضارع حاضر معروف څخه جوړیږي.

امر حاضر مجهول د مضارع حاضر مجهول څخه جوړیږي.

امر متکلم معروف د مضارع متکلم معروف څخه جوړیږي.

امر متکلم مجهول د مضارع متکلم مجهول څخه جوړیږي.

ددغه ټولو د جوړولو قاعده داده چي د مضارع مثبت په سر کي لام مکسوره (زېر لرونکی لام) راوړه او آخري حرف ئې ساکن کړه، که نون اعرابي وي نو هغه ایسته کړه او د جمع مؤنث نون پرېږده، که حرف علت نه وي لکه د يَضْرِبُ څخه لِيَضْرِبْ، د يُضْرَبُ څخه لِيُضْرَبْ، د تُضْرَبُ څخه لِتُضْرَبْ، د اَضْرِبُ څخه لِاَضْرِبْ، د اُضْرَبُ څخه لِاُضْرَبْ، د يَضْرِبَانِ څخه لِيَضْرِبَا او د يَضْرِبْنَ څخه لِيَضْرِبْنَ،

او که حرف علت وي نو هغه ایسته کړه لکه د يَدْعُوْ څخه لِيَدْعُ، د يَرْمِیْ څخه لِيَرْمِ او د يَخْشٰی څخه لِيَخْشَ،

## د امر حاضر معروف د جوړولو خاص قاعده

د امر حاضر معروف جوړولو قاعده داده چي د مضارع حاضر معروف څخه د مضارع علامه (تاء) ایسته کولو وروسته که اول حرف

متحرک (زور، زېر او پېښ لرونکی) وي نو آخري حرف ساکن کړه او
که حرف علت نه وي لکه د تُعَلِّمُ څخه عَلِّمْ او د تَضَعُ څخه ضَعْ،
او که حرف علت وي نو هغه ایسته کړه لکه د تَقِيْ څخه قِ.
او که چیري د مضارع د علامې ایسته کولو وروسته اول حرف ساکن
وي نو عین کلمې ته وګوره، که عین کلمه مفتوح یا مکسور وي نو په
سر کي همزه وصل مکسور راوړه که حرف علت نه وي لکه د تَسْمَعُ
څخه اِسْمَعْ او د تَضْرِبُ څخه اِضْرِبْ ، او که حرف علت وي نو هغه
ایسته کړه لکه د تَرْمِي څخه اِرْمِ او د تَخْشٰی څخه اِخْشَ،
که عین کلمه مضموم (پېښ لرونکې) وي نو په سر کي همزه وصل
مضموم راوړه که چیري حرف علت نه وي لکه د: تَنْصُرُ څخه اُنْصُرْ او
که حرف علت وي نو هغه ایسته کړه لکه د تَدْعُوْ څخه اُدْعُ،

**فائده**: په امر کي د جمع مؤنث نون پر خپل حال پاته کیږي او نون
اعرابي ایسته کیږي،

**فائده**: څرنګه چي نون ثقیله او خفیفه په فعل مضارع کي راځي
همداسي په فعل امر کي هم راځي، مګر په امر کي لام تاکید نه راوړل
کیږي.

**فائده**: لام تاکید مفتوح وي او د هغه په معنی کي (خامخا) وي، لام
امر مکسور وي او د هغه په معنی کي (باید) راځي.

**فائده**: همزه وصل هغه همزه ده چي د خپل مخکني حرف سره یو ځای

سي، په ویلو کې نه ویل کیږي مګر په لیکلو کې وي لکه : فَاطْلُبْ ثُمَّ اَطْلُبْ.

## پوښتنې

۱) د اِسْمَعْ، اُكْتُبْ، اِجْتَنِبْ ، څخه د امر ټولې صیغې ولیکئ.

۲) په لام تاکید او لام امر کې څه فرق دئ؟

۳) د امر حاضر معروف د جوړولو قاعده وښیاست.

۴) همزه وصل څه شي ته وايي؟

۵) د لاندې الفاظو معنی ولیکئ :

لِيَكْتُبُوا، اُتْرُكُوْا، لِتَعْلَمَنَّ، اِمْنَعِنَّ، لِاَكْتُبَنَّ، اِعْلَمُوْا،

لِيَمْنَعَنَّ، اُتْرُكْنَانِّ، لِيَسْمَعَانِّ، لِتُتْـرَكُوْا

۶) لاندې جملې په عربي ولیکئ :

تاسو د هر خلګ لیکل وکړئ،

تاسو د هر خلګ ئې خامخا ولیکئ.

هغه د هرې ښځې باید پرهیز وکړي.

ته یوه ښځه یې پریږده.

هغه دوې ښځې ئې باید واوري.

موږ ئې باید خامخا پریږدو.

تاسو ټولې ښځې یې واورئ.

تاسو ټولې ښځې یې خامخا واورئ.

ته یو سړی منعه سه.

هغه ډېر خلک باید خامخا منع سي.
تاسو دوه خلک خامخا منع سئ.

## فصل: د نهي صيغې

| صيغې | د فعل نهي صيغې | | | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | معنی | مجهول | معنی |
| واحد مذکر غائب | لَا يَفْعَلْ | يو سړی دي يې نه کوي | لَا يُفْعَلْ | په يو سړي دي نه کيږي |
| تثنيه مذکر غائب | لَا يَفْعَلَا | دوه خلک دي يې نه کوي | لَا يُفْعَلَا | په دوو خلکو دي نه کيږي |
| جمع مذکر غائب | لَا يَفْعَلُوْا | ډېر خلک دي يې نه کوي | لَا يُفْعَلُوْا | په ډېرو خلکو دي نه کيږي |
| واحد مؤنث غائب | لَا تَفْعَلْ | يوه ښځه دي يې نه کوي | لَا تُفْعَلْ | په يوې ښځې دي نه کيږي |
| تثنيه مؤنث غائب | لَا تَفْعَلَا | دوې ښځې دي يې نه کوي | لَا تُفْعَلَا | په دوو ښځو دي نه کيږي |
| جمع مؤنث غائب | لَا يَفْعَلْنَ | ډېرې ښځې دي يې نه کوي | لَا يُفْعَلْنَ | په ډېرو ښځو دي نه کيږي |
| واحد مذکر حاضر | لَا تَفْعَلْ | ته يو سړی يې مه کوه | لَا تُفْعَلْ | په تا يو سړي دي نه کيږي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تثنيه مذکر حاضر | لَاتَفْعَلَا | تاسو دوه خلک يې مه کوئ | لَاتُفْعَلَا | په تاسو دوو خلکو دي نه کيږي |
| جمع مذکر حاضر | لَاتَفْعَلُوْا | تاسو ډېر خلک يې مه کوئ | لَاتُفْعَلُوْا | په تاسو ډېرو خلکو دي نه کيږي |
| واحد مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلِيْ | ته يوه ښځه يې مه کوه | لَاتُفْعَلِي | په تا يوې ښځې دي نه کيږي |
| تثنيه مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلَا | تاسو دوې ښځې يې مه کوئ | لَاتُفْعَلَا | په تاسو دوو ښځو دي نه کيږي |
| جمع مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلْنَ | تاسو ډېرې ښځې يې مه کوئ | لَاتُفْعَلْنَ | په تاسو ډېرو ښځو دي نه کيږي |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لَااَفْعَلْ | زه يو سړی يا ښځه دي يې نه کوم | لَااُفْعَلْ | په ما يو سړي يا ښځې دي نه کيږي |
| تثنيه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لَانَفْعَلْ | موږ دوه يا ډېر خلک يا ښځې دي يې نه کوو | لَانُفْعَلْ | په موږ دوو يا ډېرو خلکو يا ښځو دي نه کيږي |

| صيغې | نهي بانون ثقيله | | | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | معنی | مجهول | معنی |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| واحد مذکر غائب | لَا یَفْعَلَنَّ | یو سړی دي یې خامخا نه کوي | لَا یُفْعَلَنَّ | په یو سړي دي خامخا نه کیږي |
| تثنیه مذکر غائب | لَا یَفْعَلَانِّ | دوه خلک دي یې خامخا نه کوي | لَا یُفْعَلَانِّ | په دوو خلکو دي خامخا نه کیږي |
| جمع مذکر غائب | لَا یَفْعَلُنَّ | ډېر خلک دي یې خامخا نه کوي | لَا یُفْعَلُنَّ | په ډېرو خلکو دي خامخا نه کیږي |
| واحد مؤنث غائب | لَا تَفْعَلَنَّ | یوه ښځه دي یې خامخا نه کوي | لَا تُفْعَلَنَّ | په یوې ښځې دي خامخا نه کیږي |
| تثنیه مؤنث غائب | لَا تَفْعَلَانِّ | دوې ښځې دي یې خامخا نه کوي | لَا تُفْعَلَانِّ | په دوو ښځو دي خامخا نه کیږي |
| جمع مؤنث غائب | لَا یَفْعَلْنَانِّ | ډېرې ښځې دي یې خامخا نه کوي | لَا یُفْعَلْنَانِّ | په ډېرو ښځو دي خامخا نه کیږي |
| واحد مذکر حاضر | لَا تَفْعَلَنَّ | ته یو سړی یې خامخا مه کوه | لَا تُفْعَلَنَّ | په تا یو سړي دي خامخا نه کیږي |
| تثنیه مذکر حاضر | لَا تَفْعَلَانِّ | تاسو دوه خلک یې خامخا مه کوئ | لَا تُفْعَلَانِّ | په تاسو دوو خلکو دي خامخا نه کیږي |

| صيغې | معروف | معنى | مجهول | معنى |
|---|---|---|---|---|
| جمع مذکر حاضر | لَاتَفْعَلُنَّ | تاسو ډېر خلک يې خامخا مه کوئ | لَاتُفْعَلُنَّ | په تاسو ډېرو خلکو دي خامخا نه کيږي |
| واحد مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلِنَّ | ته يوه ښځه يې خامخا مه کوه | لَاتُفْعَلِنَّ | په تا يوې ښځې دي خامخا نه کيږي |
| تثنيه مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلَانِّ | تاسو دوې ښځې يې خامخا مه کوئ | لَاتُفْعَلَانِّ | په تاسو دوو ښځو دي خامخا نه کيږي |
| جمع مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلْنَانِّ | تاسو ډېرې ښځې يې خامخا مه کوئ | لَاتُفْعَلْنَانِّ | په تاسو ډېرو ښځو دي خامخا نه کيږي |
| واحد مذکر ومؤنث متکلم | لَاأَفْعَلَنَّ | زه يو سړی يا ښځه دي يې خامخا نه کوم | لَاأُفْعَلَنَّ | په ما يو سړي يا ښځې دي خامخا نه کيږي |
| تثنيه وجمع مذکر ومؤنث متکلم | لَانَفْعَلَنَّ | موږ دوه يا ډېر خلک يا ښځې دي يې خامخا نه کوو | لَانُفْعَلَنَّ | په موږ دوو يا ډېرو خلکو يا ښځو دي خامخا نه کيږي |

| صيغې | نهي بانون خفيفه | | | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | معنى | مجهول | معنى |
| واحد مذکر غائب | لَايَفْعَلَنْ | يو سړی دي يې خامخا نه کوي | لَايُفْعَلَنْ | په يو سړي دي خامخا نه کيږي |

| تثنیه مذکر غائب | | | | |
|---|---|---|---|---|
| جمع مذکر غائب | لَایَفْعَلُنْ | ډېر خلګ دي يې خامخا نه کوي | لَایُفْعَلُنْ | په ډېرو خلګو دي خامخا نه کيږي |
| واحد مؤنث غائب | لَاتَفْعَلَنْ | يوه ښځه دي يې خامخا نه کوي | لَاتُفْعَلَنْ | په يوې ښځې دي خامخا نه کيږي |
| تثنیه مؤنث غائب | | | | |
| جمع مؤنث غائب | | | | |
| واحد مذکر حاضر | لَاتَفْعَلَنْ | ته يو سړی يې خامخا مه کوه | لَاتُفْعَلَنْ | په تا يو سړي دي خامخا نه کيږي |
| تثنیه مذکر حاضر | | | | |
| جمع مذکر حاضر | لَاتَفْعَلُنْ | تاسو ډېر خلګ يې خامخا مه کوئ | لَاتُفْعَلُنْ | په تاسو ډېرو خلګو دي خامخا نه کيږي |
| واحد مؤنث حاضر | لَاتَفْعَلِنْ | ته يوه ښځه يې خامخا مه کوه | لَاتُفْعَلِنْ | په تا يوې ښځې دي خامخا نه کيږي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تثنيه مؤنث حاضر | | | | |
| جمع مؤنث حاضر | | | | |
| واحد مذكر ومؤنث متكلم | لَااَفْعَلَنْ | زه يو سړی يا ښځه دي يې خامخا نه كوم | لَااُفْعَلَنْ | په ما يو سړي يا ښځي دي خامخا نه كيږي |
| تثنيه وجمع مذكر ومؤنث متكلم | لَانَفْعَلَنْ | موږ دوه يا ډېر خلګ يا ښځي دي يې خامخا نه كوو | لَانُفْعَلَنْ | په موږ دوو يا ډېرو خلګو يا ښځو دي خامخا نه كيږي |

**قاعده**: د مضارع مثبت په سر كي د نهي لام راوړه او پر كومو پنځو صېغو چي پېښ وي هغو ته جزم (وړغندی) وركړه كه حرف علت نه وي لكه : لَاتَضْرِبْ، لَاتَسْمَعْ، لَاتَنْصُرْ ، او كه حرف علت وي نو هغه ايسته كړه لكه: لَاتَدْعُ، لَاتَرْمِ، لَاتَخْشَ، د اوو صېغو څخه نون اعرابي ايسته كړه او د جمع مؤنث نون پر خپل حال پرېږده.

څرنګه چي نون ثقيله او خفيفه په فعل مضارع كي راځي همداسي په نهي كي هم راځي مګر د امر په ډول لام تاكيد په نهي كي هم نه راځي

# پوښتني

۱) د: لَا يَجْتَنِبْ، لَا يَتْـرُكْ، لَا يَمْنَعْ څخه نهي تهولي صيغې وليکئ

۲) لاندي صيغې په پښتو ترجمه کړئ:

لَا تَمْنَعُوْا، لَا يَتْرُكْنَ، لَا يَجْتَنِبَا، لَا تَمْنَعِي،

لَا تَتْرُكْنَ، لَا تَتْرُكْنَانِّ، لَا تَعْلَمَنَّ

۳) لاندي جملې په عربي ترجمه کړئ

- ❖ ته يوه ښځه مه منعه کيږه.
- ❖ هغه ډېري ښځي دي يې نه پرېږدي.
- ❖ زه هيڅکله نه منعه کيږم.
- ❖ تاسو خلک مه منعه کيږئ.
- ❖ هغه دوې ښځي دي يې خامخا نه ليکي.

**فائده**: اوس موږ د نفي تاکيد په لن، لام تاکيد په نون تاکيد، امر په نون تاکيد، نهي په نون تاکيد فرق بيانوو، که چيري شاګرد په شوق او همت سره دغه زده کړي نو د صرفو د صيغو په يادولو سره به د ترجمې ښه طاقت پيدا سي، وبالله التوفيق.

| | |
|---|---|
| لَنْ يَفْعَلَ | هيڅکله دي کار نه کوي يو سړی. |
| لَا يَفْعَلَنَّ | هيڅکله دي کار نه کوي يو سړی. |
| لَيَفْعَلَنَّ | خامخا دي کار وکړي يو سړی. |
| لِيَفْعَلَنَّ | خامخا دي کار وکړي يو سړی. |

په پښتو يې ترجمه کړئ:

| لَنْ اَضْرِبَ | لَاَضْرِبَنَّ | لَااَضْرِبَـنَّ | لِاَضْرِبَنَّ |
| --- | --- | --- | --- |
| لَيَسْمَعَنَّ | لَايَسْمَعَنَّ | لَنْ يَّسْمَعَ | لِيَسْمَعَنَّ |
| لَاتَمْنَعَنَّ | لَمْ تَمْنَعْ | لَتَمْنَعَنَّ | اِمْنَعَنَّ |

په عربي يې ترجمه کړئ:

- ❖ هيڅکله يې نه اوري ډېري ښځې .
- ❖ هيڅکله دي يې نه اوري ډېري ښځې.
- ❖ ډېري ښځې دي يې خامخا واوري.
- ❖ ډيري ښځې يې بايد خامخا واوري.
- ❖ تاسو ډېر خلک يې هيڅکله مه پرېږدئ.
- ❖ تاسو ډېر خلک يې هيڅکله نه پرېږدئ.
- ❖ تاسو ډېري خلک يې خامخا پرېږدئ.
- ❖ ډېر خلک خامخا پرهيز کوي .
- ❖ ډېر خلک بايد خامخا پرهيز وکړي .

## فصل: اسم فاعل

کوم لفظ چي يو کار کوونکی وښيي هغه ته اسم فاعل وايي، لکه فَاعِلٌ: کوونکی سړی، فَاعِلَةٌ: کوونکې ښځه.

| د اسم فاعل صیغې | | | |
|---|---|---|---|
| مذکر | واحد | فَاعِلٌ | یو سړی کوونکی |
| | تثنیه | فَاعِلَانِ | دوه خلګ کوونکي |
| | جمع | فَاعِلُوْنَ | ډېر خلګ کوونکي |
| مؤنث | واحد | فَاعِلَةٌ | یوه ښځه کونکې |
| | تثنیه | فَاعِلَتَانِ | دوې ښځي کونکي |
| | جمع | فَاعِلَاتٌ | ډېري ښځي کونکي |

**قاعده:** که ماضي درې حرفیزه وي نو د اسم فاعل واحد مذکر صیغه د (فَاعِلٌ) پر وزن وي، لکه د نَصَرَ څخه نَاصِرٌ، د ضَرَبَ څخه ضَارِبٌ، او د سَمِعَ څخه سَامِعٌ ،

که د ماضي اوله صیغه تر درو حروفو زیاته وي نو اسم فاعل د مضارع معروف څخه داسي جوړ کړه چي د مضارع علامه ایسته کړه او د هغه پر ځای مضموم (پېښ لرونکی) میم راوړه او د آخري څخه مخکي حرف ته زېر ورکړه ، او که زېر وي نو پر اخري حرف تنوین راوړه لکه د یُکْرِمُ څخه مُکْرِمٌ ، د یَجْتَنِبُ څخه مُجْتَنِبٌ او د یَتَقَبَّلُ څخه مُتَقَبِّلٌ

## سوالونه

۱. د: سَامِعٌ، مُجْتَنِبٌ، مُنْتَصِرٌ، مُتَقَبِّلٌ د اسم فاعل ټولي صیغې ولیکئ:

۲. د: عَالِمُوْنَ، مُجْتَنِبَةٌ، تَارِکَاتٌ، مَانِعَانِ، معنی وښیاست.

۳. لاندي پښتو جملې په عربي ترجمه کړئ؟

- دوې پرهېښودونکي ښځې.
- ډېري پرهیز کونکي ښځې.
- دوه لیکونکي خلګ.
- ډېر منعه کېدونکي خلګ.
- یوه اورېدونکی ښځه.
- دوې پرهیز کوونکی ښځې.
- دوه اورېدونکي خلګ.
- ډېري منعه کوونکي ښځې.

## فصل: اسم مفعول

کوم لفظ چي هغه کس یا شی وښیي چي پر هغه کار سوی وي نو هغه ته اسم مفعول وایي، لکه مَفْعُوْلٌ: کړل سوی ، مَفْعُوْلَةٌ :کړل سوې.

| د اسم مفعول | | | |
|---|---|---|---|
| مذکر | واحد | مَفْعُوْلٌ | پر یوه سړي کار سوی |
| | تثنیه | مَفْعُوْلَانِ | پر دوو خلکو کار سوی |
| | جمع | مَفْعُوْلُوْنَ | کړل سوي ډېر خلک |
| مؤنث | واحد | مَفْعُوْلَةٌ | کړل سوې یوه ښځه |
| | تثنیه | مَفْعُوْلَتَانِ | کړل سوي دوې ښځې |
| | جمع | مَفْعُوْلَاتٌ | کړل سوې ډېرې ښځې |

**قاعده:** که ماضي درې حرفیزه وي نو واحد مذکر اسم مفعول د (مَفْعُوْلٌ) پر وزن راځي لکه د نَصَرَ څخه مَنْصُوْرٌ، د ضَرَبَ څخه مَضْرُوْبٌ او د سَمِعَ څخه مَسْمُوْعٌ،

او که ماضي تر درې حرفه زیاته وي نو اسم مفعول د مضارع مجهول څخه داسي جوړ کړه چي د مضارع علامه ایسته کړه او د هغه پر ځای مضموم (پېښ لرونکی) میم راوړه ، په آخر کي تنوین ورکړه لکه د یُکْرَمُ څخه مُکْرَمٌ، د یُجْتَنَبُ څخه مُجْتَنَبٌ او د یُتَقَبَّلُ څخه مُتَقَبَّلٌ ،

## سوالونه

۱. د: مُجْتَنَبُ، مُسْتَنْصَرٌ، مُتَقَبَّلٌ ټولي صیغې ولیکئ.

۲. د لاندي الفاظو معنی وښیاست:

مَسْمُوْعُوْنَ، مَعْلُوْمَاتٌ، مَتْرُوْكَـةٌ، مَنْصُوْرَانِ

۳. لاندي پښتو جملې په عربي ترجمه کړئ؟

- يوه وهل سوې ښځه.
- دوې پرېښودل سوي ښځي.
- ډېر مرسته کړل سوي خلک.

## فصل: اسمِ تفضيل

کوم لفظ چي د يوه کوونکي لويي وښيي هغه ته اسم تفضيل وايي، صيغې يې په لاندي ډول دي:

| د اسم تفصيل | | | |
|---|---|---|---|
| مذکر | واحد | اَفْعَلُ | زيات کونکی يو سړی |
| | تثنيه | اَفْعَلَانِ | زيات کونکي دوه خلک |
| | جمع | اَفْعَلُوْنَ<br>اَفَاعِلُ | زيات کونکي ډېر خلک |
| مؤنث | واحد | فُعْلَى | زياته کونکې يوه ښځه |
| | تثنيه | فُعْلَيَانِ | زياتي کونکي دوې ښځي |
| | جمع | فُعْلَيَاتٌ<br>فُعَلٌ | زياتي کوونکي ډېري ښځي |

**قاعده**: اسم تفضيل واحد مذکر همېشه د (اَفْعَلُ) پر وزن جوړوه او

واحد مؤنث د (فُعْلَی) پر وزن، لکه: اَکْبَرُ، کُبْری، اَصْغَرُ، صُغْرَی.
که ماضي درې حرفيزه نه وي نو د هغه اسم تفضيل نه راځي.

## سوالونه

۱. د اَسْمَعُ، اَمْنَعُ، اَعْلَمُ څخه د اسم تفضيل ټولې صيغې وليکئ:
۲. د: اَعْلَمُوْنَ، سُمْعَيَاتٌ، اَضَارِبُ معنى وښياست.
۳. لاندې پښتو جملې په عربي ترجمه کړئ؟

- دوه ډېر اوږدونکي خلک.
- دوې ډېرې وهونکې ښځې.
- ډېرې پوهيدونکې ښځې.
- ډېر اوريدونکي ټوله خلک.

## فصل: اسم ظرف

کوم لفظ چې د يو کار د ځای يا وخت نوم وښيي هغه ته اسم ظرف وايي، صيغې يې په لاندې ډول دي:

| اسم ظرف | | |
|---|---|---|
| واحد | مَفْعَلٌ | يو وخت يا يو ځای د کار کولو |
| تثنيه | مَفْعَلَانِ | دوه وخته يا دوه ځايه د کار کولو |
| جمع | مَفَاعِلُ | ډېر وختونه يا ډېر ځايونه د کار کولو |

**قاعده**: د درې حرفیزه ماضي ظرف د فعل مضارع د واحد مذکر صیغې څخه داسي جوړ کړه چي د مضارع علامه ایسته کړه او د هغه پر ځای مفتوح میم راوړه، که عین کلمه مضموم وي نو هغه ته زور ورکړه او کنه نو پر خپل حال یې پرېږده، آخري حرف ته تنوین ورکړه، لکه د يَنْصُرُ څخه مَنْصَرٌ، د يَضْرِبُ څخه مَضْرِبٌ او د يَسْمَعُ څخه مَسْمَعٌ.

که ماضي درې حرفیزه نه وي نو د هغه اسم ظرف او اسم مفعول دواړه یو ډول وي.

## سوالونه

۱. د مَضْرَبٌ، مَنْصَرٌ، مَقْتَلٌ څخه د اسم ظرف ټولي صیغې ولیکئ.

۲. د مَضَارِبُ، مَسَاجِدُ، مَدَارِسُ معنی وښیاست.

۳. لاندي جملې په عربي ولیکئ:

❖ دوه د وهلو ځایونه.

❖ دوه وختونه د مرستي کولو.

## فصل: اسم آله

کوم لفظ چې د یو کارکوونکي شي نوم وښیي هغه ته اسم آله وايي، صیغې یې په لاندي ډول دي:

| اسم آله | | |
|---|---|---|
| واحد | مِفْعَلٌ<br>مِفْعَلَةٌ<br>مِفْعَالٌ | یوه آله د کار کولو |
| تثنیه | مِفْعَلَانِ<br>مِفْعَلَتَانِ<br>مِفْعَالَانِ | دوې آلې د کار کولو |
| جمع | مَفَاعِلُ<br>مَفَاعِلُ<br>مَفَاعِيلُ | ډېرې آلې د کار کولو |

**قاعده:** اسم آله د مضارع معروف څخه داسي جوړېږي:

۱. د مضارع علامه ایسته کړه او مکسور میم راوړه، عین کلمې ته زور ورکړه که چیري زور نه وي او آخري حرف ته تنوین ورکړه.

۲. د اول صورت په اخر کي تاء زیاته کړه.

۳. د مضارع د علامې پر ځای میم مکسور راوړه ، دعین کلمې وروسته الف زیات کړه او په آخر کي تنوین ورکړه، لکه : يَضْرِبُ څخه مِضْرَبٌ (اول صورت) مِضْرَبَـةٌ (دوهم صورت) مِضْرَابٌ (دریم صورت) .

## سوالونه

۱. د مِضْرَبٌ، مِفْتَـاحٌ، مِقْـرَاضٌ څخه د اسم آله ټولي صيغې وليکئ.

۲. د مِسْمَعٌ، مَنَـاصِرُ، مَفَاتِيْـحُ معنی وښیاست.

۳. لاندي جملې په عربي ترجمه کړئ :

دوې د اورېدو آلې.

ډېري د وهلو آلې.

د علم الصرف لومړی برخه ختمه سوه

# علــم الصــرف

## (دوهمه برخه)

حَامِدًا وَّمُصَلِّيًا وَّمُسَلِّمًا

ښکاره دي وي چي د اصلي حروفو په اعتبار ټول فعلونه او اسمونه پر دوه ډوله دي:

١) ثلاثي.

٢) رباعي.

**ثلاثي** : هغه ته وايي چي په هغه کي درې حرفه اصلي وي لکه : ضَرَبَ، نَصَرَ .

**رباعي** : هغه ته وايي چي په هغه کي څلور حرفه اصلي وي لکه: بَعْثَرَ، دَحْرَجَ.

بيا په ثلاثي او رباعي کي د هريوه دوه ډولونه دي :

| ثلاثي مجرد | ثلاثي مزيد فيه |
|---|---|
| رباعي مجرد | رباعي مزيد فيه |

**مجرد**: هغه ته وايي چي د هغه د ماضي واحد مذكر غائب په صيغه

کي یو حرف زیات نه وي لکه: نَصَرَ، ضَرَبَ ثلاثي مجرد دي، او: بَعْثَرَ، دَحْرَجَ رباعي مجرد دي.

**مزيد فيه**: هغه ته وايي چي د هغه د واحد مذکر غائب په صيغه کي يو حرف زيات وي لکه: اِجْتَنَبَ، اِسْتَنْصَرَ ثلاثي مزيد فيه دي، او تَسَرْبَلَ، تَزَنْدَقَ رباعي مزيد فيه دي.

**د ثلاثي مجرد شپږ ډولونه دي**: چي شپږ بابونه ورته وايي او په لاندي ډول دي: لکه

١. فَعَلَ، يَفْعُلُ لکه نَصَرَ، يَنْصُرُ.

٢. فَعَلَ،يَفْعِلُ لکه ضَرَبَ، يَضْرِبُ.

٣. فَعِلَ، يَفْعَلُ لکه سَمِعَ، يَسْمَعُ.

٤. فَعَلَ، يَفْعَلُ لکه فَتَحَ، يَفْتَحُ.

٥. فَعُلَ،يَفْعُلُ لکه كَرُمَ،يَكْرُمُ.

٦. فَعِلَ،يَفْعِلُ لکه حَسِبَ،يَحْسِبُ

د دغه بابو تفصيل لاندي وګورئ او صيغې يې په ياد کړئ:

| | | |
|---|---|---|
| **(۱): اول باب** پر وزن د فَعَلَ يَفْعُلُ، په ماضي کي عين کلمه مفتوح او په مضارع کي عين کلمه مضموم لکه: نَصَرَ يَنْصُرُ. | **صرف صغير** | نَصَرَ يَنْصُرُ نَصْرًا فَهُوَ نَاصِرٌ وَنُصِرَ يُنْصَرُ نَصْرًا فَهُوَ مَنْصُوْرٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اُنْصُرْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَاتَنْصُرْ اَلظَّرْفُ مِنْهُ مَنْصَرٌ وَالْاٰلَةُ مِنْهُ مِنْصَرٌ اَفْعَلُ التَّفْضِيْلُ مِنْهُ اَنْصَرُ وَالْمُؤَنَّثُ مِنْهُ نُصْرٰى. |
| **مصادر** | | اَلطَّلَبُ: پلټنه کول، اَلدُّخُوْلُ: داخلېدل، اَلْعِبَادَةُ: بندګي کول، اَلْقَتْلُ: وژل، اَلتَّرْكُ: پرېښودل. |
| **(۲): دوهم باب** پر وزن د: فَعَلَ يَفْعِلُ، په ماضي کي عين کلمه مفتوح او په مضارع کي مکسور لکه: ضَرَبَ، يَضْرِبُ | **صرف صغير** | ضَرَبَ يَضْرِبُ ضَرْبًا فَهُوَ ضَارِبٌ وَضُرِبَ يُضْرَبُ ضَرْبًا فَهُوَ مَضْرُوْبٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِضْرِبْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَضْرِبْ اَلظَّرْفُ مِنْهُ مَضْرِبٌ وَالْاٰلَةُ مِنْهُ مِضْرَبٌ اَفْعَلُ التَّفْضِيْلُ مِنْهُ اَضْرَبُ وَالْمُؤَنَّثُ مِنْهُ ضُرْبٰى. |

| | | |
|---|---|---|
| مصــــــادر | | اَلْغَسْلُ: پريولل، اَلظُّلْمُ: ظلم كول اَلْفَصْلُ: جلاكول، اَلْغَلْبُ: غلبه كول، اَلْجُلُوْسُ: كښېنستل |
| (۳): دريم باب پر وزن د فَعِلَ يَفْعَلُ په ماضي كي عين كلمه مكسور او په مضارع كي مفتوح لكه: سَمِعَ. يَسْمَعُ | صرف صغير | سَمِعَ يَسْمَعُ سَمْعًا فَهُوَ سَامِعٌ وَ سُمِعَ يُسْمَعُ سَمْعًا فَهُوَمَسْمُوْعٌ اَلْاَمْرُمِنْهُ اِسْمَعْ وَالنَّهْىُ عَنْهُ لَا تَسْمَعْ اَلظَّرْفُ مِنْهُ مَسْمَعٌ وَالْاٰلَةُ مِنْهُ مِسْمَعٌ اَفْعَلُ التَّفْضِيْلُ مِنْهُ اَسْمَعُ وَالْمُؤَنَّثُ مِنْهُ سُمْعَى. |
| مصــــــادر | | اَلْعِلْمُ: پوهېدل، اَلْفَهْمُ: فهمول اَلشَّهَادَةُ: شاهدي وركول، اَلْحَمْـدُ: تعريف كول، اَلشُّرْبُ:څښل. |

| باب | | |
|---|---|---|
| (۴): **څلورم باب** پر وزن د فَعَلَ يَفْعَلُ په ماضي او مضارع کي عين کلمه مفتوح لکه: فَتَحَ، يَفْتَحُ. | **صرف صغیر** | فَتَحَ يَفْتَحُ فَتْحًا فَهُوَفَاتِحٌ وَفُتِحَ يُفْتَحُ فَتْحًا فَهُوَمَفْتُوْحٌ اَلْاَمْرُمِنْهُ اِفْتَحْ وَالنَّهْىُ عَنْهُ لَاتَفْتَحْ اَلظَّرْفُ مِنْهُ مَفْتَحٌ وَالْاٰلَةُ مِنْهُ مِفْتَحٌ اَفْعَلُ التَّفْضِيْلُ مِنْهُ اَفْتَحُ وَالْمُؤَنَّثُ مِنْهُ فُتْحٰى. |
| **مصادر** | | اَلْمَنْعُ: منعه کېدل، اَلصَّبْغُ: رنګول ، اَلرَّهْنُ: ګرو کول، اَلسَّلْخُ: پوست کښل. |

| باب | | |
|---|---|---|
| (۵): **پنځم باب** پر وزن د فَعُلَ يَفْعُلُ په ماضي او مضارع کي عين کلمه مضموم لکه: كَرُمَ. يَكْرُمُ | **صرف صغیر** | كَرُمَ يَكْرُمُ كَرَمًا فَهُوَكَرِيْمٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اُكْرُمْ وَالنَّهْىُ عَنْهُ لَاتَكْرُمْ اَلظَّرْفُ مِنْهُ مَكْرَمٌ وَالْاٰلَةُ مِنْهُ مِكْرَمٌ اَفْعَلُ التَّفْضِيْلُ مِنْهُ اَكْرَمُ وَالْمُؤَنَّثُ مِنْهُ كُرْمٰى. |
| **مصادر** | | اَلْقُرْبُ: نژدې کېدل، اَلْبُعْدُ: لیري کېدل. اَلْكَثْرَةُ: زیاتېدل، اَللُّطْفُ: پاکېدل. |

| (٦): **شپږم باب** پر وزن د فَعِلَ يَفْعِلُ په ماضي او مضارع کي عين کلمه مکسور لکه: حَسِبَ ،يَحْسِبُ. | صحيح | حَسِبَ يَحْسِبُ حَسْبًا وَحِسَابًا فَهُوَ حَاسِبٌ وَحُسِبَ يُحْسَبُ حَسْبًا وَ حِسَابًافَهُوَمَحْسُوْبٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِحْسِبْ والنهى عنه لَا تَحسِبْ الظرف منه مَحْسِبٌ وَالْاٰلَةُ مِنْهُ مِحْسَبٌ اَفْعَلُ التَّفْضِيْلُ مِنْهُ اَحْسَبُ وَالْمُؤَنَّثُ مِنْهُ حُسْبىٰ. |
|---|---|---|

**ثلاثي مزيد فيه**: دوه ډوله وي، يو ثلاثي مزيد د همزه وصل سره او بل ثلاثي مزيد بېله همزه وصل.

د ثلاثي مزيد په همزه وصل سره نهه بابونه دي او هغه دادي:

(١): اِفْتِعَالٌ، اِجْتِنَابٌ (٢): اِسْتِفْعَالٌ ، اِسْتِنْصَارٌ (٣): اِنْفِعَالٌ ، اِنْفِطَارٌ (۴): اِفْعِلَالٌ، اِحْمِرَارٌ (۵): اِفْعِيْلَالٌ ، اِدْهِيْمَامٌ. (٦): اِفْعِيْعَالٌ، اِخْشِيْشَانٌ (٧): اِفْعِوَّالٌ، اِجْلِوَّاذٌ. (٨): اِفَّاعُلٌ اِثَّاقُلٌ. (٩): اِفَّعُّلٌ ،اِطَّهُّرٌ.

**پاملرنه**! د ثلاثي مجرد شخه ماسوا د نورو ټولو بابو په صيغو کي اسم مفعول د اسم ظرف معنى ورکوي او په هغه کي اسم آله او اسم تفضيل نه راځي.

| | | |
|---|---|---|
| (۱): اول باب<br>اِفْتِعَالٌ لکه :<br>اِجْتِنَابٌ: پرهیز کول | صرف صغیر | اِجْتَنَبَ يَجْتَنِبُ اِجْتِنَابًا فَهُوَ مُجْتَنِبٌ وَاُجْتُنِبَ يُجْتَنَبُ اِجْتِنَابًا فَهُوَمُجْتَنَبٌ اَلْاَمْرُمِنْهُ اِجْتَنِبْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَاتَجْتَنِبْ. |
| مصـــادر | | اَلْاِقْتِنَاصُ: ښکار کول، اَلْاِعْتِزَالُ: یو ډول کېدل، اَلْاِحْتِمَالُ: پورته کول. |

| | | |
|---|---|---|
| (۲): دوهم باب<br>اِسْتِفْعَالٌ لکه :<br>اِسْتِنْصَارٌ: مرسته غوښتل. | صرف صغیر | اِسْتَنْصَرَ يَسْتَنْصِرُ اِسْتِنْصَارًا فَهُوَ مُسْتَنْصِرٌ وَاُسْتُنْصِرَ يُسْتَنْصَرُ اِسْتِنْصَارًا فَهُوَ مُسْتَنْصَرٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِسْتَنْصِرْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَاتَسْتَنْصِرْ. |
| مصـــادر | | اَلْاِسْتِفْسَارُ: پوښتنه کول، اَلْاِسْتِغْفَارُ: بخښنه غوښتل، اَلْاِسْتِخْلَافُ: خلیفه جوړول، اَلْاِسْتِمْتَاعُ: گټه اخیستل. |

| (۳): دریم باب اِنْفِعَالٌ لکه: اِنْفِطَارٌ : چاودل. | صرف صغیر | اِنْفَطَرَ يَنْفَطِرُ اِنْفِطَارًا فَهُوَمُنْفَطِرٌ اَلْاَمْرُمِنْهُ اِنْفَطِرْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَنْفَطِرْ. |
|---|---|---|
| مصادر | | اَلْاِنْشِعَابُ: ښاخ پر ښاخ كېدل، اَلْاِنْقِلَابُ: بدلېدل، اَلْاِنْصِرَافُ: گرځېدل. |

| (۴): څلورم باب اِفْعِلَالٌ لکه: اِحْمِرَارٌ: سور كېدل. | صرف صغیر | اِحْمَرَّيَحْمَرُّاِحْمِرَارًا فَهُوَ مُحْمَرٌّ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِحْمَرِرْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَحْمَرِرْ. |
|---|---|---|
| مصادر | | اَلْاِخْضِرَارُ: شين كېدل، اَلْاِصْفِرَارُ: ژړېدل. اَلْاِبْيِضَاضُ: سپين كېدل. |

| (۵): پنځم باب اِفْعِيْلَالٌ لکه: اِدْهِيْمَامٌ: تور كېدل. | صرف صغیر | اِدْهَامَّ يَدْهَامُّ اِدْهِيْمَامًا فَهُوَمُدْهَامٌّ اَلْاَمْرُمِنْهُ اِدْهَامِمْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَاتَدْهَامِمْ. |
|---|---|---|
| مصادر | | اَلْاِسْمِيْرَارُ: غنم اوره كول، اَلْاِكْمِيْتَاتُ: د آس ..... كېدل. اَلْاِضْحِيْرَارُ: د اوښو وچېدل. |

| | | |
|---|---|---|
| (٦): شپږم باب<br>اِفْعِيْعَالٌ لکه:<br>اِخْشِيْشَانٌ:<br>ډېر........کېدل. | صرف صغیر | اِخْشَوْشَنَ يَخْشَوْشِنُ اِخْشِيْشَانًا فَهُوَ مُخْشَوْشِنٌ اَلْاَمْرُمِنْهُ اِخْشَوْشِنْ وَالنَّهْيُ عَنْـهُ لَاتَخْشَوْشِنْ. |
| مصـــــادر | | اَلْاِخْلِيْلَاقُ: د جامې زړه کېدل.<br>اَلْاِمْلِيْلَاحُ: د اوبو ژور کېدل،<br>اَلْاِخْرِيْرَاقُ: د جامو څيرې کېدل. |
| (٧): اووم باب<br>اِفْعِوَّالٌ لکه اِجْلِوَّاذٌ<br>د آس ځغلول. | صرف صغیر | اِجْلَوَّذَ يَجْلَوِّذُ اِجْلِوَّاذًا فَهُوَ مُجْلَوِّذٌ اَلْاَمْرُمِنْهُ اِجْلَوِّذْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَجْلَوِّذْ. |
| مصـــــادر | | اَلْاِخْرِوَّاطُ: د لرګي توږل،<br>اَلْاِعْلِوَّاطُ: د اوښ په غاړه کې قلاوه تړل. |
| (٨): اتم باب<br>اِفَّاعُلٌ لکه: اِثَّاقُـلٌ:<br>درووند کېدل. | صرف صغیر | اِثَّاقَلَ يَثَّاقَلُ اِثَّاقُلًا فَهُوَ مُثَّاقِلٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِثَّاقَلْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَثَّاقَلْ. |

| | | |
|---|---|---|
| مصادر | | اَلْاِدَّارُكُ: وچول، اَلْاِشَّابُهُ: هم شكل كېدل، اَلْاِصَّالُحُ: په خپلو كي صلح كول. |
| (۹): نهم باب اِفَّعُّلُ لكه: اِطَّهُرُ پاكېدل. | صرف صغير | اِطَّهَّرَ يَطَّهَّرُ اِطَّهُّرًا فَهُوَمُطَّهِّرٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِطَّهَّرْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَطَّهَّرْ. |
| مصادر | | اَلْاِزَّمُّلُ: جامه هوارول، اَلْاِضَّرُّعُ: عاجزي كول، اَلْاِذَّكُّرُ: نصيحت قبلول. |

د ثلاثي مزيد فيه بېله همزه وصل پنځه بابونه دي او په لاندي ډول دي:

(۱): اِفْعَالٌ (اِكْرَامٌ) (۲): تَفْعِيلٌ (تَصْرِيفٌ) (۳): تَفَعُّلٌ (تَقَبُّلٌ)

(۴): مُفَاعَلَةٌ (مُقَاتَلَةٌ) (۵): تَفَاعُلٌ (تَقَابُلٌ).

| | | |
|---|---|---|
| (۱): اول باب اِفْعَالٌ لكه: اِكْرَامٌ: عزت كول. | صرف صغير | اَكْرَمَ يُكْرِمُ اِكْرَامًا فَهُوَمُكْرِمٌ وَ اُكْرِمَ يُكْرَمُ اِكْرَامًا فَهُوَ مُكْرَمٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اَكْرِمْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تُكْرِمْ. |

| مصـــــادر | اَلْاِسْلَامُ: مسلمانېدل، د پيروى لپاره غاړه کښېښته کول، اَلْاِذْهَابُ: بېول ، اَلْاِکْمَالُ: پوره کول ، اَلْاِعْـلَانُ: ښکاره کول. |
|---|---|

**فائده:** څرګنده دي وي چي د باب افعال د امر حاضر همزه وصلي نه ده بلکه قطعي ده ځکه د هغه د باب مضارع بايد (يُأَكْرِمُ) وي، مګر څرنګه چي د واحد متکلم په صيغه (أُاَكْرِمُ) کي د دوو همزو يو ځای کېدو په وجه يوه همزه ايسته سوه او (أُكْرِمُ) سو، ځکه نو د يوې صيغې د موافقت په وجه د ټولو صيغو څخه همزه ايسته سوه، نو د امر حاضر (اَكْرِمْ)همزه وصلي نه سوه بلکه قطعي سوه ځکه د (تُأَكْرِمُ) څخه جوړه سوې ده، ښه فکر وکړه.

| (۲): دوهم باب تَفْعِيلٌ لكه: تَصْرِيفٌ: اوښتل، اړول | صرف صغير | صَرَّفَ يُصَرِّفُ تَصْرِيْفًا فَهُوَ مُصَرِّفٌ و صُرِّفَ يُصَرَّفُ تَصْرِيْفًا فَهُوَ مُصَرَّفٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ صَرِّفْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَاتُصَرِّفْ. |
|---|---|---|

| | |
|---|---|
| مصـــــادر | اَلتَّقْدِيْمُ: مخته کېدل، مخته کول<br>اَلتَّعْجِيْلُ: تلوار کول.<br>اَلتَّمْكِيْنُ: ځای ورکول،<br>اَلتَّعْظِيْمُ: عزت کول. |

| | | |
|---|---|---|
| (۳): دريم باب<br>تَفَعُّلُ لکه تَقَبُّـلُ<br>قبلول. | صرف صغیر | تَقَبَّلَ يَتَقَبَّلُ تَقَبُّلًا فَهُوَ مُتَقَبِّلٌ وَ تُقُبِّلَ يُتَقَبَّلُ تَقَبُّلًا فَهُوَ مُتَقَبَّلٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ تَقَبَّلْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَتَقَبَّلْ. |
| مصـــــادر | | اَلتَّبَسُّمُ: مسکا کول. اَلتَّفَكُّهُ: مېوه خوړل،<br>اَلتَّلَبُّثُ: ځنډ کول، اَلتَّعَجُّـلُ: تلوار کول. |

| | | |
|---|---|---|
| (۴): څلورم باب<br>مُفَاعَلَةٌ لکه: مُقَاتَلَةٌ<br>وَ قِتَـالٌ: په خپلو<br>کي جګړه کول. | صرف صغیر | قَاتَلَ يُقَاتِلُ مُقَاتَلَةً وَقِتَالًا فَهُوَ مُقَاتِلٌ وَقُوْتِلَ يُقَاتَلُ مُقَاتَلَةً وَقِتَالًا فَهُوَ مُقَاتَلٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ قَاتِلْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تُقَاتِلْ. |

| | |
|---|---|
| مصادر | اَلْمُخَادَعَةُ وَالْخِدَاعُ: دوکه ورکول، اَلْمُعَاقَبَةُ وَالْعِقَابُ: عذاب ورکول. اَلْمُلَازَمَةُ وَاللِّزَامُ: په خپلو کي لازمول. اَلْمُبَارَكَةُ: برکت تر لاسه کول. |
| (۵): پنځم باب تَفَاعُلٌ لکه: تَقَابُلٌ مخامخ کېدل. | صرف صغیر: تَقَابَلَ يَتَقَابَلُ تَقَابُلًا فَهُوَ مُتَقَابِلٌ وَتُقُوبِلَ يُتَقَابَلُ تَقَابُلًا فَهُوَ مُتَقَابَلٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ تَقَابَلْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَتَقَابَلْ. |
| مصادر | اَلتَّفَاخُرُ: په خپلو کي فخر کول، اَلتَّعَارُفُ: يو بل ته تعارف کول، اَلتَّخَافُتُ: په خپلو کي پټه خبره کول. |

د ثلاثي ټول ټلوېښت (۲۰) بابونه وه چي بيان يې د تفصيل سره تېر سو.

د رباعي ټول ټلور بابونه دي چي په هغو کي د رباعي مجرد يو ازي يو باب دی.

| (۱): اول باب فَعْلَلَةٌ لكه :بَعْثَـرَةٌ پورته کول. | صرف صغیر | بَعْثَرَ يُبَعْثِرُ بَعْثَرَةً فَهُوَ مُبَعْثِرٌ وَ بُعْثِرَ يُبَعْثَرُ بَعْثَرَةً فَهُوَ مُبَعْثَرٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ بَعْثِرْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تُبَعْثِرْ. |
| --- | --- | --- |
| مصادر | | اَلْقِنْطَرَةُ: پل ترل. اَلزَّعْفَرَةُ: په زعفرانو رنګول، اَلْعَسْكَرَةُ: لښکر تيارول. اَلدَّحْرَجَةُ: ........ |

د رباعي مزيد فيه دوه ډولونه دي:

۱. رباعي مزيد فيه په همزه وصل سره.

۲. رباعي مزيد فيه بېله همزه وصل.

د رباعي مزيد فيه په همزه وصل سره دوه بابونه دي او دواړو بابونه لازم دي:

| (۱): باب اول اِفْعِنْلَالٌ لكه: اِبْرِنْشَاقٌ خوشحاله کېدل. | صرف صغیر | اِبْرَنْشَقَ يَبْرَنْشِقُ اِبْرِنْشَاقًا فَهُوَ مُبْرَنْشِقٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِبْرَنْشِقْ وَالنَّهْيُ عَنْهُ لَا تَبْرَنْشِقْ. |
| --- | --- | --- |

| | |
|---|---|
| مصــــادر | اَلْاِخْرِنْجَامُ: جمع کېدل. اَلْاِغْرِنْكَاسُ: وېښتان تورېدل، اَلْاِسْلِنْطَاءُ: پر کوربچه ببده کېدل. |

| | | |
|---|---|---|
| (۲): باب دوم اِفْعِلَّالٌ لکه: اِقْشِعْرَارٌ: رپېدل، وېښتان جگ درېدل. | صرف صغیر | اِقْشَعَرَّ يَقْشَعِرُّ اِقْشِعْرَارًا فَهُوَ مُقْشَعِرٌّ اَلْاَمْرُ مِنْهُ اِقْشَعِرَّ اِقْشَعِرِّ اِقْشَعْرِرْ وَالنَّهْىُ عَنْهُ لَاتَقْشَعِرَّ لَاتَقْشَعِرِّ. |
| مصــــادر | | اَلْاِقْمِطْرَارُ: تنګېدل، اَلْاِشْفِتْرَارُ: ګډ وډ کېدل، اَلْاِزْمِهْرَارُ: سترګي سري کېدل. |

د رباعي مزید فیه ببله همزه وصل یو باب دی او هغه هم لازم دئ:

| | | |
|---|---|---|
| (۱): باب اول تَفَعْلَلٌ لکه: تَسَرْبُلٌ جامه اچول | صرف صغیر | تَسَرْبَلَ يَتَسَرْبَلُ تَسَرْبُلًا فَهُوَ مُتَسَرْبِلٌ اَلْاَمْرُ مِنْهُ تَسَرْبَلْ وَ النَّهْىُ عَنْهُ لَاتَتَسَرْبَلْ. |
| مصــــادر | | اَلتَّبَخْتُرُ: په ناز تلل ، اَلتَّمَقْهُرُ: په قهر کېدل. اَلتَّبَرْقُعُ: بغره اغوستل. |

# مُلْحَقْ بَرُبَاعِيْ

څرګنده دي وي چي د اهل صرفو په اصطلاح کي الحاق دادی چي په کلمه کي يو حرف زيات کړي او د بلي کلمې هم وزن يې کړي، نو ملحق برباعي هغه ثلاثي مزيد فيه دی چي د رباعي هم وزن وي، مګر د الحاق شرط دادی چي د ملحق او ملحق به مصدر په خپلو کي مطابق وي، نو اَکْرَمَ، يُکْرِمُ، که څه هم په ښکاره د: دَحْرَجَ، يُدَحْرِجُ، پر وزن دي مګر څرنګه چي د دواړو مصدر مختلف دی ځکه نو (اَکْرَمَ) ته ملحق برباعي نه سو ويلای.

# د مُلْحَقْ بَرُبَاعِيْ اقسام

ملحق برباعي پر دوه ډوله دی: ۱- ملحق برباعي مجرد، ۲- ملحق برباعي مزيد فيه.

د ملحق برباعي مجرد اووه بابونه دي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | فَعْلَلَةٌ | لکه | جَلْبَبَةٌ | څادر اچول |
| ۲ | فَعْنَلَةٌ | لکه | قَلْنَسَةٌ | خولی پر سر کول. |
| ۳ | فَوْعَلَةٌ | لکه | جَوْرَبَةٌ | جورابي اغوستل. |
| ۴ | فَعْوَلَةٌ | لکه | سَرْوَلَةٌ | پرتوګ اغوستل. |
| ۵ | فَيْعَلَةٌ | لکه | خَيْعَلَةٌ | بې لستونو کورتۍ اغوستل. |

| ۶ | فَعْيَلَةٌ | لکه | شَرْيَفَةٌ | د کښت زيات بلګونه پرېکول |
|---|---|---|---|---|
| ٧ | فَعْلَاةٌ | لکه | قَلْسَاةٌ | خولۍ پر سر کول. |

د ملحق به رباعي مزيد فيه هم دوه قسمونه دي: ١- ملحق به تَدَحْرَجَ ٢- ملحق به اِحْرَنْجَمَ .

د ملحق به تَدَحْرَجَ هم اووه بابونه دي :

| ١ | تَفَعْلُلٌ | لکه | تَجَلْبُبٌ | څادر اچول |
|---|---|---|---|---|
| ٢ | تَفَعْنُلٌ | لکه | تَقَلْنُسٌ | خولۍ پر سر کول. |
| ٣ | تَفَوْعُلٌ | لکه | تَجَوْرُبٌ | جورابي اغوستل. |
| ۴ | تَفَعْوُلٌ | لکه | تَسَرْوُلٌ | پرتوګ اغوستل. |
| ۵ | تَفَيْعُلٌ | لکه | تَخَيْعُلٌ | بې لستوڼو کورتۍ اغوستل |
| ۶ | تَفَعْيُلٌ | لکه | تَشَرْيُفٌ | د کښت زيات بلګونه پرېکول |
| ٧ | تَفَعْلٍ | لکه | تَقَلْسُئٌ | خولۍ پر سر کول. |

د ملحق به اِحْرَنْجَمَ ، دوه بابه دي:

(١) اِفْعِنْلَالٌ لکه اِقْعِنْسَاسٌ : ...

(٢) اِفْعِنْلَاءٌ لکه اِسْلِنْقَاءٌ : پورمخي پرېوتل .

ﺑﺎﺏ

